د خوشحال ختک د مړینې د درې سوم
کالیزې په مناسبت

# د صدیق دیوان

د افغانستان د علومو اکاډمي
د ژبو او ادبیاتو انستیتوت

# د صدیقي دیوان

د خیر نوال دوست په سریزه او تصحیح

د څېړنیار عبدالواجد واجد او سعدالله په اهتمام

د افغانستان د علومو اکاډمي
د ژبو او ادبیاتو انسټیټیوټ

۱۳۵۸

د چاپ شمېر: زر ټوکه

# سریزه

خوښ یو چې د پښتو د ادب ننګ ته د لرغوني ادب یو خورا ډیر ښه اثر وړاندې کوو. دا اثر د صدیق نومي شاعر دیوان دی. صدیق د پښتو یو خوږ ژبی شاعر دی چې تر اوسه یې پوره احوال څرګند نه وو او لکه یو قیمتی لال د ادب د سینا نو له ستر ګو پټ پاتې و.

تر اوسه موږ یوازې د ده هغه دوه غزلونه لیدلي وو چې په (کلید افغاني) کې رابرټ هیوز خپاره کړي وو. او بیا وروسته د ده دری غزلونه پوهاند رشتین د کابل مجلې د (۱۳۴۳) کال په دریمه ګڼه کې خپاره کړي وو.

په دې وخت کې د ده د اشعارو هغه سیکرو فیلم موږ ولوست چې په هند کې د تونګ د دولتی کتابخانې څخه په ډیلی کې د ملي موزیم له لاری پښتو ټولنې ته رارسیدلی او د لته د پښتو ټولنې په کتابخانه کې ساتل شوی دی (اوښاغلي عبدالواجد واجد او محترمې شریفې شریف لوستی دی او بیا د ښاغلي واجد په ملګرتیا ور باندې ښاغلي عارف غروال نوی کتنه

کړی ده) په دغه میکروفیلم کې دصدیق ددیوان نه علاوه دسکندر خټک «لیلا او مجنون» دحبیب الله داشعارو مجموعه (چی نقل یې دپښتوټولنې په کتابخانه کې خوندی دی(۱)) او د«اختیارات بدیعی» په نامه دیوه بل طبی اثر ترجمه هم درج دی.

دلته موږ یوازې دصدیق په دیوان خبری کوو:

باید په تاسف ووایم له کومې نسخې څخه (چی غالباً به په نړی کې یوازینۍ نسخه وی او دغه میکروفیلم ورڅخه اخیستل شوی) دسرلـه پلوه شپږه اوږد پاڼې له خوا نیمګړی ده. ځکه چی دالفبا په ردیف دغه دیوان یوازې د(ل) درديف پورې رسیدلی دی او د(ل) په ردیف کې نور قطع شوی دی.

په دغه نسخه باندې دکابل مجلی د۱۳۳۴ کال په څلورمه ګڼه کې پوهاند رښتین داسې رڼا اچولې ده:

«دهند په مرکزه یلی کې یونوی سلی موزیم جوړشوی دی چې د هند ډیرلرغونی اثار پکې راغونډ شوی دی. دهغه په یوه برخه کې د پښتو ژبې قلمی اثار هم ساتل شوی دی. دغه اثار اصلا دټونګ له ریاسته د مولانا ابوا لکلام ازاد په امر راوړل شوی دی او دټونګ دنواب امیرمحمد خان په کتابخانې پورې اړه لری، دهر کتاب په لومړی مخ دټونګ د کتابخانې او دنوموړی نواب مهر لګیدلی دی. دصدیق د یوان دټونګ د نواب امیرمحمد خان دکتابخانی په (۱۹) لمبر قید دی.

---

۱- دکابل مجلی د۱۳۳۴ کال په څلورمه ګڼه کې معرفی شوی دی.

دا نسخه دمیا محمد صاحبزاده له پاره په (۱۲۲۳ ه) کال کې لیکل شوې ده.

له پاسه پرې دا عبارت لیکل شوی دی (د فقیر محمد کتاب دی) دغه نسخه په روښانه فارسي خط لیکل شوې او ښایسته طلای جدولونه لري. لیک دود یې د ختیکو دلیک دود په شان دی.

د سرپاڼې یې پوره دی خو په آخر کې څه نیمګړې تیا لري. صدیق د شهزاده معظم مغولی همعصر دی او د اورنګزیب په عصر کې ورو کی هلک و. اصلا داشنغرو، خود پېښور په ښار کې اوسیده او په ختیه داشنغر مامنزی دی».

ضمناً پوهاند رښتین دصدیق درې غزلونه هم خپاره کړی دی (۱)

د ۱۳۴۵ کال دچنګاښ په میاشت کې چې دهند دجمهور رئیس سرستیا ل فقید ډاکتر ذا کرحسین افغانستان ته په رسمی سفر را غلی و دهند له کتابخانو څخه یې د پښتو د ځینو قلمی نسخو میکرو فیلم هم له ځانه سره راوړی و چې بیا د پښتو ټولنې په واک کې ورکړ شو. په دغه میکرو فیلم کې هم دغه دصدیق دیوان، دحبیب الله د یوان، دسکندرختک لیلی او مجنون- دنواب محمدخان بړیڅ فرهنګ پښتو- د اخو ندموسی دنیا رسا له - اختیارات بدیعی- ددولت دیوان او یوسف زلیخا شامل وو.

په هرصورت دغه دیوان نیمګړی دی او یوازې ددغې ترتیب شوې

---

۱- کابل مجله د ۱۳۴۳ کال خلورمه ګڼه

نسخې د (ل) په ردیف کې (۱۷٦) غزل دديوان وروستی غزل دی. له دی وروسته چې کوم غزلونه درج دی‌هغه دپخوانی لیکك دودسره سم په نورو ردیفونو کې را غلي دی ، خو موږ د او سني لیکك دود سره سم د (مجهول واو ، ې ، ه) غزلونه خپلو ردیفونو ته نقل کړل.

ضمناً با یدوویل شي چې له (۲۳۷) غزل څخه اتکل کیږی چې صد یق په الفنامه هم لر له او دا به یې یوه برخه وی. د نسخې لیکك دود داسې دی چې کټ مټ دخوشحال دکورنی په عنعنه دی :

(کلیشه و گوری)

دغه نسخه ټول (۱۸۳) مخونه لری او په هرمخ کې یې په منځنی ډول (۱۳) بیتونه ځای شوی دی.

ددغې نیمگړی نسخې دټولو غزلونو شمیر (۳۱۳) دی او ټول بیتونه یې (۲۳۹٦) دی.

| د دیوان لیک دود | او سني لیک دود |
| --- | --- |
| ټ | ټ |
| چ | څ ، چ |
| ځ | ځ |
| ډ | ډ |
| ړ | ړ |
| ژ | ږ ، ژ |
| ش | ښ ، ش |
| ک | ګ ، ک |
| ڼ | ڼ |

ملفوظه (ه) او مجهول (و، ي) نه دي لیکل شوي.

# صدیق څوک و؟

د صدیق حالات تراوسه بیخی په تیاره کې وو او د هغه په باب د
راورټي هیوز په ( کلید افغانی ) کې د وو غزلو نو په رڼا کې پښتانه
شعرا لومړی ټوک همدو مره لیکلی وو چې « صدیق هم زموږ د هغو
پخوا نیو شاعرا نو څخه دی چې سوانح او پوره وا قعات یې موږ ته نه
دی معلوم . »

په پښتانه شعرا کې د متوسطی طبقې شاعر او د رحمان بابا له
پیروانو څخه ګڼل شوی دی او په کابل مجله کې د حمید غونډې یو نازکخیال
شاعر بلل شوی دی .

دصدیق د احوا لو په باب ددغې نسخې له (۱۳۶) غزل څخه نسبتاً
ښه معلو مات لاس ته را ځی چې په همدغه غزل کې له یوې خوا د ده
دعصر او زما نې او له بلې خوا دده د سیا سی نظر او پښتونولی په باب
ښه معلو مات موجود دی .

په دغه غزل کې دی د پښتنو او مغولو تر منځه د (۱۰۸۳ ه.ق)

کال د محرم د میا شتې دویمه د (۱۶۷۲ ع) کال دا پریل (۳۰) نیټه دخیبر مشهوره جګړه یا دوی چې د مغولی لښکر مشر دکابل صوبه دار محمد امین واو په دغه جګړه کې د دښمن فوځ سخته ماتې وخوړه چې دخوشحال په قول خلویښت زره مغولی فوځ پکې هلاک شو.

خوشحال خټک ددغې پېښې بیا ن یوځای داسې کوی :

مکافات دکوم ګناه دکوم شامت دی

چې په بر دمیر جمله (۱) شود رست تبر

څه شینواری څه مهمند څه اپریدی وو

چې یې مات کړ د صوبې و اره لښکر

په یله قصیده کې دا پېښه داسې یادوي :

پښتنو زلمیا نو بیا لاسونه سره کړل

لکه بازمنګولې سرې کا په خپل ښکار

ایمل خان دریا خان دوا ړه مرګ یې مه وای

هیڅ تقصیر دواړو ونه کړ وار په وار

دخیبر دره یې سره کړله په وینو

په کړ په یې هم روان کړ دنډ و کار

اول جنګ دلوړی شاد تا تړې و

چې خلویښت زره مغول شول تار په تار

---

۱ـ د (میر جمله) نه مطلب دمحمد امین کورنی ده . دخوشحال دکلیاتو دمقدمې (خ) مخ وګوری ۰

خوښيږي لو نه بې په ښه د پښتنو شوې

اس ، اوښان ، هاتيان او لجه قطار قطار

په دغه وخت کې صديق خان هلک بولي او پښتانه د شهزاده ( معظم ) دماتولو له پاره را بولي لکه چې وايي :

حق د پښتنو دى که اوس بياد ننګک له پاره

سور په شهزاده کا دغه تور خوني خېبر

ور اندې زه هلک وم چې پرې ډوب محمدامين شو

ښه ښه شهيدان وو ډېر مغول شول پرې ډېر

نه مومند ايمل شته نه خوشحال خټک دريا شته

نه لښکر غلجي ، له پښتنو خالي شو غر .

د دغې جګړې په وخت (۱۰۸۳ هـ . ق) کې صديق خان هلک بولي ، د (هلک) له کلمې څخه معلومېږي چې دى به ( ۸-۱۶ ) کلن وا و په دغه حساب به د (۱۰۷۰ هـ ، ق) د کلو نو په حدودو کې زېږيدلى وي . ضمناً په پورتني شعر کې له دغې مصرع ( نه مومند ايمل شته ، نه خوشحال خټک ، دريا شته ) څخه څرګندېږي چې د خوشحال له مړينې (۱۱۰۰ هـ) وروسته هم صديق څه وخت ژوندى و .

صديق د خوشحال د يوه بل همعصري (حمزه خان) يادونه هم په دغه شعر کې کړې ده او د خوشحال په لوسږى قلمي نسخه کې (چې د پښتو ټولنې په کتابخانه کې خوندي ده او د خوشحال په ژوند «۱۰۹۹ هـ .ق» داپرېدل شوې په چانکوره کې ليکل شوې ده حمزه خان دوه ځايه داسې ياد شوى دى :

که یوسف دي کـه منډ ر دي

چې په نـام د میر ا فغا ن د ي

پـه هـمـه و مـې سـلا م د ی

چـې په پت د حمز ه خا ن د ي

په بل غزل کې :

چې په ز ړه لکه ا غز ي شو ي

نـا مر د ی د حمـز ه خا ن د ي

غا لباً دا هماغه حمزه خا ن دی چې د یوسفزیو قو می مشر او په تاریخ مرصع کې یې په (۲۳۵ - ۲۷۸ - ۲۷۹ - ۲۸۱ - ۲۸۵ - ۳۲۷ - ۳۲۹ - ۳۳۱ - ۳۴۰ - ۴۰۱ - ۴۰۳ - ۴۱۳ - ۴۱۵ ) مخو نو کې مفصله یادونه را غلې ده .

دصدیق له اشعارو داسې معلومیږي چې دی دخپل وخت قومی مشر اوشته من شخص و لکه چې وایی :

یو سف زی که محمد زی که بل فریق دی

دا همه په ما مطلب کا ندې خپل کار درست

(۱۱۶) غزل

نه مې لا س پـه سخاوې پـه کیڼ خبـر شو

نه کمی کا زر یمین او تر یسار ه - (۲۳۹) غزل

دلویو قومونو کارونه دوخت دشرا یطو سره سم په لویو کسا نوسمیږی او (زر) له همد وی سره ډیر دي نو زما په عقیده دا هماغه صدیق دی چې د تاریخ مرصع مو لف د (۱۱۲۴ ه.ق) کال په پیښو کې د وه ځا یه یاد

کړی دی په (۳۳۰) مخ کی په قوم مهمند زی او په (۳۳۴) مخ کې يې دڅلورسوي دملک په نامه یاد کړی دی .

دصدیق له اشعارو ښکاري چې دی به ډېر وخت ژوندی و او دځوانی په عمر به نه وي مړ . په یوه بیت کې وایی :

نظر کم شو ، ږیره سپینه ، خوله کنډواسه

نه شوم خلاص دنفس له مکره ، له وسواسه

(۲۶۲)

نو که د (نظر د کموالی ، دږیري سپینوالی او دغاښونو ټلو) له پاره په منځنی ډول (۶۰) کاله فرض کړو او تکل کولای شو چې صدیق به لږ ترلږه د (۱۱۳۰ ه.ق) کال پورې ژوندی و .

په (۱۳۶) نظم کې د (شهزاده) له نامه معلومیږی چې دشهزاده اورنګ زیب (یا شهزاده معظم مغولی) عصر به دده دشاعری داوج مرحله وه . کیدی شی چې له (شهزاده) نه د دده مطلب (شهزاده اورنګزیب) وی چې په (۱۶ -۱۷-۲۵۶) غزلونو کې د هغه یادونه کوي لکه چې په (۲۵۶)غزل کې وایی :

د اورنګ په تخت خندا صدیق په دا کړم

چې دیار ددر د سپوشوم په حساب زه

دپوهاند رښتین دیادوني له مخې صدیق اصلا داشنغرو چې د پیښور په نوښار کې اوسیده .

دی دواړه نومونه داسې یادوي :

دریغه که وطن په توروغرونو د صدیق وای

سه وایی په نوښهر ملک بې سه وای اشنغر (۱۳۶)

د ده په اشعارو کې بل ځای د اشنغر نوم نه دی یاد شوی خو د (نوښهر) یادونه بل ځای داسې کوی :

که د زړه رضا دي ده چې مجنون کورم

تر مجنون صدیق بد ترشو په نوښهر - (۱۳۷)

له دغو بیتونو څخه معلومیږی چې صدیق به د اشنغروي او که د تاریخ مرجع د صدیق سره یې یو شخص و بولو نو یقیناً به د اشنغر د چارسدې وي .

د لته یوه بله خبره هم په زړه پورې ده او هغه دا چې د صدیق له اشعارو څخه د (روښانی) تصوف او سلوک بوی ځی . دده له اشعارو ځای په ځای معلومیږی چې د کوم پیر مرید دی لکه چې وایی :

و هر چا وته خواږه و ترنې شکر دی

د صدیق و یل د پیر له برکته (۱۸۶) غزل

د مرید تعظیم د پیر عزت طلب دی

د استاد ادب طلب نه یې مردوده (۲۱۸)

تمامی قباحت دا دی که باور کړې

چې مرید دخپله پیره شی مر دود (۱۲۹)

د ده په اشعارو کې کامل ( پیرکامل ) هم ځای په ځای لیدل کیږی چې غالباً (روښانی) اصطلاح ده :

ګرد غبار د زړه په لوی کامل باندې صیقل کړه

پورته په فلك روښن ضمیر بد بیضا شه (۲۶۳)

د کامل ذکر صدیق بویه حاصل کا

چې آګاه شی دغمونو له هوسه (۲۶۰)

همدارنګه په لاندې شعر کې د پیری او مریدی او په نا منظم ډول روښانی تصوفی مقاماتو ته اشاره کوی :

| | |
|---|---|
| چې ثابت په شریعت شې | نور سالك د حقیقت شې |
| د توحید ډیوه کړه بله | چې روان په طریقت شې |
| بې پرواهه به رفتن کړې | چې د پیر په معرفت شې |
| د تلقین ذکر حاصل کړه | چې مشغول په محبت شې |

(۳۱۱)

او همدارنګه له (۷۳۲) غزل او ځینو نورو څخه د روښانی تصوف بوی ځی او په همدغه اد بی سبك لیکل شوی دی .

نوله دغه ځایه ده چې دده په اشعارو کې یادشوی (بایزید) به هماغه (بایزید روښان وی) نه (بایزید بسطامی) یا بل :

په ګفتار ثانی خپل ځان د بایزید کړې

په کردارې ډیر بد تر ترسګ مګسه (۲۶۰)

په کلاسیك ادب کې صدیق دلوړی پوړی شاعر دی دده په اشعارو کې ډیر داسې غزلونه شته چې په ناز کخیا لی کې دحمید او شیدا داشعارو انډول دی .دمثال له پاره (۱۰۹-۳۰۹) غزلونه خو په صدیق باندې

دخوشحال اغیزه ډېره زیاته لیدل کیږی او د هغه ځوابونه هم لری لکه (۱۹۸)غزل :

داغزل دخان د دي غزل جواب دی . «که داستاسترګېو جار باسم ځان ته»

خوشحال په همدغه غزل کې وایی :

چې په خپله افغانی ژبه نادان دی

په ترکی خبري څه وایې افغان ته

دغه مطلب صدیق داسې افاده کړي دی :

زه پښتون لا په پښتو ژبه کې اړشم

ته وماوته ترکی خبرې څو کړې (۲۹۰)

خوشحال وایی :

په چا داد په لپه، نمځ کوي فلکه :

په چالونې په اړیو په چجونه (غزلیات)

صدیق وایی :

څوك محتاج د یوه نان لرې فلکه !

په چاداد په خروار ونو په رشو کړي (۳۰۷)

همدارنګه په صدیق باندې درحمان بابا اغیزه هم لیدله کیږی او (۹۹) غزل یې دهغه په ځواب کې ویلی لکه چې وایی :

بل غزل په انتخاب چې کړي صدیقه

د رحمان د غزل بس دی دا جواب

څوکله کله په شاعرانه غرور کې صدیق ځان له رحمان بابا (سړبن) اؤ خوشحال (کرلانی) نه هم جګ بولی لکه :

سړبن کړلاني دواړه پښتانه هم

داوېنا د هيڅ يوه په کتاب نه شته (۱۹۶)

په (۱۳۶) غزل کې د ده د پښتونولۍ د پښتنو د خپلواکۍ د دښمنو مغولو په خلاف د ده ملي احساسات ښه څرګند دي. د همدغه ملي احساس په رڼا کې دی په توره، مېړنتوب او شجاعت مين شاعر دی او د هغو ستاينه کوي لکه:

مېړني په مېړنتوب سره يادېږي

د ناسر دو کله خوك وايي سندرې (۲۸۲)

لاس په سترګو کښېل رښتيا د هغه چا شي

چې سړ وند څرګند په وخت د شجاعت کا (۱۱)

د زمري نامه پرې کېږده زمري څه دي

ځوان چې ځان کا ندی د تورو په مېدان غوڅ (۱۲۴)

دلته بايد وويل شي چې همدغه صديق په ځينو تذکرو کې دوه تنه ګڼل شوي دي چې د دغه ديوان په خپرېدو سره دغه غلطي سمېږي.

د صديق د اشعارو د څرنګوالي قضاوت زور ښاغليو لوستونکو ته پرېږدو.

ښېرنوال دوست شينواري د پښتو ټولنې مرستيال

بسم الله الرحمن الرحيم

د رژ ړ ا کا ندي په سر مژ گا ن ز ما
طعنه تل کا په سره اور (۱) سرجان زما

دزړه داغ له نعمتو نونه فارغ کړم
گر م ثا ن شته همیشه په خوا ن زما

محبت مې ځای په زړه کې کاشتا شکر
په ښه ملک تخم کري د هقا ن زما

د بیرو ن زنځیر د وره سد د نظر کا
په حر مان شو خوښ نظر حیر ا ن زما

کل بلامې ستا دعشق لهسره اخلې
چې تر سر ځا ر یږي تل آ سما ن زما

---

۱ ـ د کابل مجلې د (سره اور) په ځای په میکروفلم کې (سردر) هم لوستل کیدای شي

د غفلت ز نځير مې لا پسې کلکيږي
څکوی تل دنفس فرمان ز ندان زما

چې په خاورو دصد يق گلو نه کيږي
سينه داغ کړه دلاله بوستان زما

* * * (۱)

هرو يښته په تن زما ددرد فرياد کا
سر نشتر په رگ زما مات د پولاد کا

دردزما غونډي زغمل چې دچا نه وي
په تيشه به تندی مات لکه فرهاد کا

د منصور معلم ز ه ظا هر ، باطن يم
تله شاگرد په طريقه تل داستاد کا

ر سيدل يار ته لهځا نه تير يدل دي
خضر لنډه لار په فرمان اوږده بنياد کا؟

په چمن کې شگفتن دگل خزان دی
پهژوندي کله صرفه دمرگ جلاد کا

چې تړ لې له خند اسره ژړا شوه
څوك به کله دا ندوه پهځای زړښاد کا

(۲) آزادي په بندگی کې صديق غواړي
نوم به پورې په بنده څوك د آزاد کا

ستا په تورو مشکو طعن تور گیسو کا
چې زړه داغ د لاله خال ستا دا برو کا

د طلب حلقه په غاړه د قمري شوه
ناست په سرد سروې تل ناره کوکو کا

جدا یې په معنی نشته دا وصال دی
صفا مخ د آینې مې همزانو کا

که جهان سرگشته لاړ ستا په طلب دی
هلال ځان ضعیف دچا په جستجو کا

په تدبیر سره گنبل زمکه آسمان شي
ستا دعشق پاره گریوان به څوک رفو کا

تنهایي دخوار عاشق خوښي دزړه شوه
راز دزړه ښکاره و یار ته رو برو کا

چا نیازي تنها لازم شوه ستا په عشق کې
مزري مې په وخت د کار پخول بازو کا

د نیستي په لار تر برق تیره دروم
تل غواص په طلب ډوب ځان د لؤ لؤ کا

(۳) چې محراب و ته یې شا کړه امام وایي
د صدیق قبله نماي خال دا برو کا

دد لبر ښایست لقا په نقاب بل کا

هر حجاب یې سخ پناه په حجاب بل کا

درخشان کښلی‌حصار پریږدی بیرون شی

روښنایی خوشی دزړه په مهتاب بل کا

جدا یی جد ا له ما دو جد نه شو ه

ذره زړه رقص زما په آفتاب بل کا

په کاسه دسر، د دار په سر شراب خورم

ز(۱)منصور، مستی‌زما په‌شراب بل کا

د یوسف په وصال ځوانه زلیخا شوه

بعد نن پیری دعشق په شباب بل کا

تلاوت مې خط په مخ دیار بیاض شو

ساده رو محبت را د کتاب بل کا

خاموشی مې گویا یی شوه په څررنگه

یار زما ز ما په نام شی، جواب بل کا

څو مې نوم د هستی‌شته لا هو مره هست یم

هست به نیست ما د نیستی په‌حساب بل کا

(م) دحیات داو بو څه منت صد یق وړی

تشنه لب به یې سیراب لب اب بل کا

---

۱- د (زه) په ځا ی په اصل کې (زړه) دی

په غمگين خاطر هوس چې گذرگاه کا

رڼا شپه تياره را تله د صبحگاه کا

په قفس کې بند بيغمه تو تى نه وى

کوم هوس زاهد په کونج دخا نقاه کا

دمطلب طلب هرگز په هوس مه کړه

د يوسف سير اول منزل په چاه کا

(عاقبت شايست) دگل تمام خزان دى

... ژړا رښتيا دى بې اشباه کا (١)

دشامت نزول په وصل کې هجران دى

(بيل عاشق) کله سا کن ستا له درگاه کا؟

جدا يى په معنى نشته تم وصال دى

(رو شنا يى) به څوك جدا دمهروماه کا

(٥) پيټى ستاد محبت په سر صديق ځى

په جهان خبر جرس د سحر گاه کا

چې خبر نه دى په حال احباب زما

چې په غم شو زړه سوخته کباب زما

د بهار له سيره پەسو فرا غت شو

دا خسته غمگين خاطر بې تاب زما

---

١ـ د لومړى مصرع اودوهمې مصرع لومړى برخې نه لوستل کيږى.

٢ـ د «پەسو» په ځاى (پيښه) لوستل کيږى.

در دوغم ، فراق که غوا ړي مهیادی
ستا په عشق کي نشته بل اسباب زما

زه دزړه و ینې مدام لکه مینا خورم
ته ساقی نه کړي کرم په باب زما

هر زمان يې ښه دیدن ته په سجود یم
چې يې ځای شو دابرو محراب زما

د یارخیال په کې ځای وکړ ، زه پوهیږم
اوس به نه راځی په سترګو خواب زما

په فلك به مهر پټ مخ په سحاب کا
که ښکاره شو دغبرا (۱) مهتاب زما

ستا دمخ آفتاب به ښکل کړم که دې زلفو
را په لاس کړ ښا یسته طناب زما

(۶) ما صدیق ته به بل تور دمینې نه وی
که څرګند شي په محشر حساب زما

تشنه لب مې په سیراب کله څیګر کا
وچ مې بخت بیرون له شوره را شکر کا

دخپل ځانسختې مې داده څوچې ژووم
زما نه مې کا نی مات واړه په سر کا

---

(۱) غبرا ـ زمکه

په مشرق په مغرب نمر غوندې ځرګند يم
چې قسمت مې ډيراوده ترشپې سحر کا

دا زل د شو يو منځ به په چا شي
زيادو کم به روزی کوم يو مقدر کا

په تحقيق ګيله ما نه له بله ترک دی
په او بو له خضره څه ما نه سکندر کا

دظاهر صفايی يو، د باطن بل شوه
لو يی کومه دصيقل چې په جوهر کا

(۷) چې تريارو صديق يا رو ته نژدې دی
فکر څه عنقا د تلو په بال و پر کا

ځان پخوا ترسرګک اول سړی خبر کا
چې يې زيرمه د توښې د لوی سفر کا

کله غوټه د ګريوان په بل پرانيزی
سرپخوا لا له خرقې دانا بدر کا (۱)

په آغاز دخپل مطلب حريت غواړی
تل هوښيار په سرانجام د کار نظر کا

ځو نفسه غم آلودچې مې باقي شته
دا به هم کله جدا په لوی سحر کا

ځو د تن کشتی مې ښه په ر کاب نه ده
ناخدای بو يه په دا بحر خطر کا

---

(۱) اصل: «سر په خوا دا خرقه دانا بدر کا»

تل درنه بېږ ی په ګل ولای ښځیږی

غم اندوه به دخپل ځان نه تن پرورکا

(۸) ستا په عشق کې غم دځان په خاطر باردی

له دی باره په دا لارصدیق حذرکا

عشق پاره کړ په جهان ګریوان زما

ننداره کادګریوان جهان زما

که هزار ځله ماپټ سا ته په زړه کې

عشق ښکاره کړ هغه رازنهان زما

چې دا هسی ډیر غمونه د دلبر وړی

خدای بلا لره پیدا کړ ځان زما

له ما نې به بې و سرمه خو به ژووم

خرخشو ته یې چې نه شې تو ان زما

یارمې داغ په خاطر هسې ا یښی نه دی

چې پیدا کا طبیبان درمان زما

دکافر سره مې زیست شو ، پری و یریږم

سلامت به څه رنګ ځی ایمان زما

په ژړا به لا ترما په هور نه سرشی

چې ترغوږشی د هر چا فغان زما

دا همه زما له آهه دی چې ګرځی

چې تر سرځاریږی تل آسمان زما

یار په خوله در قیب بیا گیلی سا نې کا
نور به نه شي په بل څه گومان زما
گو ندې شکلي به په لاس گلدستې و اخلی
خدای دی تل لری تازه بوستان زما

(۹) سود همه چې عاشقی کې دصد یق دی
که یوه ذره یې ز یان شوه زیان زما

د بوستان بلبله تل څه خوعشرت کا
په سایه باغبان دگل خوب دراحت کا
په وهل تن دمجنون شین کړ هلکو
د لیلی خال جامه نیل دمصیبت کا
څپا نده وریځې په کور لو یې بیررنځی
پروانه په سول دشمعې ډیر جر ئت کا
بل په ښه حسن ، جمال چې را څرگند شی
مخ به پټ دمحشر نمر په قیامت کا
دعشرت فکر چې نه کا په دولت کې
بیشا نی حاصل نادان تله ددو لت کا
د کثرت توفان لیده شي په عالم کې
ساقی څاڅکی مې په ما کی دوحدت کا
کوریې شته لکه عنقا له خلکه بېل دی
چې په ځان پوري نامه خوك دخلوت کا

که دعشق خبري غوا ړي له با غوانه

د ډېر يې کار ژبه تر تيغ دشهادت کا

(۱۰) درحمت اوبه نامه داعمال و ينځي

د صديق ژړا بهار د ندامت کا

چې داروو ا مي درد دمحبت کا

پوسپه (۱) داغ سې بهصيا دد قيامت کا

دغمزې په تيغ يې په سو شهيدزه شوم

په پيغور مې به اوس خضر ندامت کا

دحيوان په چشمه داعنايت نشته

لکه تيغ يې د غمزې سم شهادت کا

لاس په ستر گو کښل رښتيا د هغه چا شي

چې مړوند خرگند په وخت دشجاعت کا

جلوه گاه زما دزړه تر فلک بردی

تل دوړاندې ځی هغه چې اما ست کا

دښمنې له کانې تل زړه په خطروی

ديوانه کله پروا د ملامت کا

ستا دعشق په وادی سړو تلي نه ددی

دانه شوره زمکه کله فلاحت کا

بی له ښو به نور تری نورځه صادر نه شي

هر سړی چې فهم کار د قباحت کا

---

(۱) د «دارو» په ځای (دوردو) اود «پوسپه» په ځا «پنبه» لوستل کيږي

بې زبان را ته رښتیا ترڅان بهتر شو

خاموشي ر ته رښتیا دو لایت کا

ستا ترصبره پورې هیڅ نه ده صدیقه

که سا یه د هماي بخش دسعادت کا

(۱۱) محبت سې دصدیق ترنمر والا شو

لوی رښتیا د لویو ملو نور فاقت کا

مخ دې که مهتاب دی چې یې زه گورم د لبر ستا

وو ایه وما ته هیڅ په حال نه یم خبر ستا

چاو یل یوسف دی، چاوې شکلې تر یوسف دی

دا به زه با ور کړم چې ترې شکلې دی بشر ستا

کوی دی که آرم دیچې سې زړه په کې خوشحال شو

وو ایه وما ته په کوڅه چې کړم گذر ستا

څه ته یې تشبیه کړم خو حیران په دا فکرت یم

مار دی که سنبل دی که دوه زلفې دي عنبر ستا

لا ندې باندې لب لا زما اوس ځبلاه نښلي

ماچې دي ځبې ښلي دوا ړه سرې شو نلې شکر ستا

غشي د ترکانو که هر څو تر زړونو ښوی ځي

لا تر زړونو ښوی ځي د یردوه ستر گو نظر ستا

زړه دي په گوگل کې که دي کاڼی، نه پوهیږم

نرم گرم نه شي په ژړا سې هیڅ د لبر ستا

ته زما دعمر کو تاهی غواړي که نه وی

زه غوارم د پیرعمر چې دعا کړم په سحرستا

(۱۲) شه چې په د پیرغم کې لهٔ شا دو ز با امید شو

پر یشو وصدیق خوشی بلهاری یې کړ ترسرستا

په پیغور مین اندوه څه داغیار کا

اور په سو لو وا یه څه پروا دخار کا

سنګ خارا یې تر قدم لا ندې رانجه شی

ګړندی مجنون په لوړی تله د یار کا

آزاده سروی له قید ه سر بیرون وړی

نصیحت د یا ثرخه په دل افګار کا

بوی اخر دسوی زړه لهٔ زړه بدرشی .

بند به څوك سیلاب لهٔ سره د کوهسار کا

د بنوغشی دې شوی دروسی لهٔ د له

کوم نشتر وسواس له رګه د بیمار کا

هیڅ غبار دروشن د لو یه زړه نه وی

د آفتاب توره به غم څه د زنګار کا

(۱۳) د غماز ترخه ویل ترخه شراب دی

په پیغور صدیق پروا څه داغیار کا

درست جهان روښان شوبکار ه زه دی مهتا بان لا

شوړ په خلقو ګډ شو ، په کې نشته نمکدان لا

هره ونه پا زه شين تو تا پري گويايي كا

نه دي پيدا شوي د لته اوس شكرستان لا

غرونه دي كه زمكه دا همه واړه بهار دي

مخ د زمكې گل شو ، بوگل نشته په بوستان لا

سترگې مې غبار شوې چې تما م جهان پرې ما كوت

يا يې خط په مخ شو يا بهذه و يم جانان لا

د اجلوه د چا ده چې د يار پر جلوه گا ه شوه

خوار عاشق دي گوښې كسې نه كسې حيران لا

دردز ما دزړه وـ ده زړه ورو را څخه واخيست

لال د بدخشان دي لال غواړي بدخشان لا

زور دزړې څه دي چې خپل مخ په كې نمر پټ كا

څاڅكي دا وبو دي چې په كې ور كه دي حيوان لا

رقص د آفتاب دزړې مخ شو په كې گرځي

گوي په تر دد شو په ميدان نه دي چوگان لا

(بهار) بندي آزادي ده چې آزاد شو بنديوان دي

بند شو ستا په زلفو صديق نه موسې زندان لا

چې د لبره په ما هوسره غنچ وخيال كا

غنچ وخيال واړه په خپل حسن جمال كا

وايم زړه يې گوندې نرم په ژړا كړم

په ژړا پورې مې لا پيچې ، نا خوال كا

په ترخو کې خواږه دپردی چې خبر شوم

معشوقه دې له عاشق سره جنجال کا

که هزار ځله یار بد کا په دا څه شي

خواخرسې بیاغمجن خاطرخوشحال کا

توري ستر کې یې زما د ځان بلادی

چې وما ته کا ته ځیر لکه قتال کا

په کا ته کا ته مې ستر کې ور تسه خیژی

لا به کله راښکاره دا بروخال کا

په دیدن یې مینه ما ته کړی ء بلبلو

په را تله را تله به تیر ګلو نه کال کا

د بد خواه په بدخواهی به زما څه شي

که و یار ته مې غند نه ما ه وسال کا

یوزمان راځخه مه څه زړه مې نه شي

په ژړا مې ستر کې در د د ښکال کا

چې زما په د لګیری دچا خوشي شي

هم هغه کسا ن د ې خدای زما په حال کا

(۱۵) لکه وو په هغه خوی، په هغه شا ن دی

ښا یسته په صد یق هسې غنچ وخیال کا

غم د مرګ ژوندون هر ګز عاشقان نه کا

سوی کښت منت د تندر، باران نه کا

دزره داغ زغملی کله نادان شي
په نعمت شکر درب کا فران نه کا

د لیلی زلفي زنځیر لري په غاړه
دیوانه مجنون پر وا دزندان نه کا

آزاده تر پیټی سیوری دهمای دی
د اورنګ په تاج خوبی ملنګان نه کا

دجهان شا دی په زمکه کې پرتې دی
په فنا ختلی غیر خا مو شا ن نه کا

(۱٦) درپه پټه خوله صدف ساتی صدیقه !
آه په راز باندې خبر محرمان نه کا

لا به کله هغه مخ دلبر نمای کا
چې هرڅوك بې په دېدن پسې های های کا

په خاطر کې مې نور هیڅ نشته بې مینې
که یې مهرزره په ستر ګوځای په ځای کا

د اورنګ په سلطنت به یې خندا شی
په هر چا چې مو لا سیوری دهمای کا

څه په ستې ، په کو شش نه ده دعشق بخره
دا همه قدرت پخپله هغه خدای کا

داد ، ستد وچې په کن فیکون وشو
په اخر به یې څوك برد ـ څوك به یې بای کا

مصلحت د هوښيا را نو هوښياري ده

نادا نان به چاري واړه پخپل راى کا

(۱۷) لا به کله هغه سخ ورته نماى شي

چې صديق يې په ديدن پسې واى واى کا

عيب جوى سې په عيبو نوچې نظر کا

پروت په چاه کې يو يوسف ځني بدر کا

خول هنر سا تل پناه ځه عيب نه دى

آينه که په صيقل کې پټ جوهر کا

هيڅ حجاب دحسن نشته بې حجابه

ښکا رول د يوسف سخ له ابره نمر کا

که بې آب د تيغ زما ويني نصيب شي

دا د بخت مدد به ما ځو زا مور کا

رهبرى دخضر هيڅ نه ده بې بخته

بې طلبه نصيب ځه کو ثر سکندر کا

د ځرخى په تاو تر دوك مزى چا پيرشى

بيا بې ځاى سينه دننه خول گـو هر کا

(۱۸) په کې ځاى صديق هيڅ نه موسى هيڅرته

که تمام جهان ته ځاى په بحرو بر کا

سفيدى د صبحدم چې سخ نما کا

د چمن غو نچى گلو نه په خندا کا

په دیدن یې د بلبلو فراغت وی

په نغمه نعمه په څو صو ته صدا کا

چې د تلو ناري یې وي درا تلو نه وي

مغني په چغا نه کې دا ادا کا

دعاشق په زعم لار په صو ممه شو

زاهد څه له د ریا زهدو تقوا کا

(۱۹) د دیدن سودا په لاس خوښه صدیق کړه

زاهدان طمع د حورو په سبا کا

چې په عشق کې طلب ستا احوال له ما کا

دمجنون مینه بیان څوك په لیلا کا

سرګشته حیران پریشان تل نا قراریم

کله خونه باد په کلی په صحرا کا

دآفتاب نور ته سور نیول هیڅ نه دي

چې پروا دعشق لهعقله څه دچا کا

(۲۰) فراغت امید صدیق ته ډیر محال دی

چې په عشق کې څوك راحت غواړی خطا کا

مې به تل د محبت په کار کې خام کا

ګلو (۱) سخت د مضطرب مرغه لادام کا

---

۱ - ګلو ستونی

د څرخې په تاب تر دوك رشته چا پېر شي
په گردش يې چې وروورو جدا ايام کا
آب و نان چې نن پيران غوا ړي له څوا نه
هر گدا ی حريص د نس طمعه په شام کا
يو قدم د انا بې فهمه په لار نه ړدي
ځا ی صياد په ځای دروحلقه د دام کا
عاقبت په دا حيات کې مرگ ليده شي
تگ تر کومه پورې څوك په سرد بام کا
افزونې يې په خمار د ستر گو خط شي
په بهار ساقي گردان د ميو جام کا
(۲۱) سفيدی د بنا گو شو صبحد مشوه
رنځوری لری صديق چې پری آرام کا

چې په گل مينه بلبل کا — غم به ډير ځنې حاصل کا
گل هفته وي په چمن کې — بيا به پس له هفتې تلل کا
اشنايي دې هيڅوك نه کا — دا فلك جدا کول کا
اشنا يي خو ودانی د ه — جدا يي د زړه نتل کا
د هجران قصاب ته گوره — تيغ په لاس د زړه ورژل کا
د هرچا سازې ناسازې — خوار عاشق دی چې زغمل کا
(۲۲) دا به کله شي صديقه
چې يارورې زړه دې خوشحال کا

د چمن په ګلو باد د سبا خه کا
غونچې ډیریوه کته وی داخه کا (۱)؟
سینه چاك اوره له تیغه تل د برق وړی
شرم ستا کتو ته ستر ګې حیا خه کا
تللی زړه له ماچې تا ته واصل نه وي
مسافر به په هر شهر اشنا خه کا
د تهمت له کانیو مخ جار ایستی نه شم
صلابت به سخت ویل په ګدا خه کا
د ازل روزي تمام رسي و ما ته
ډیر به نور ګردون تر دا نه سخاخه کا
تور دسترګو انتظار ته رهټیا سپین شی
وا په باد مصر ته بل راهنما خه کا
زر ګره حاجت هرګز د کثیر نه وړي
ازلی نیکبخت سایه د هما خه کا
(۳۳) د مراد په با د جهاز دصدیق دروسی
بې تدبیره به بل کار زنا خدا خه کا
نادانی د هر نا د ان په دذانا کا
تور صیقل آیینه لا په مخ صفا کا

---

(۱) په اصل کې کت مت همداسې لیکل شوی دی .

نصیحت د هر هوښیار کار د نادان شي
مبصر به کار په څه د نابینا کا

صفایي د زړه په کار د حقیقت وي
د نادان خوښي د زړه سپینه تورا کا

بې خبر له مرګه کلک په خوب اوده وي
تل بیدار په توره شپه کار د سبا کا

سپین و یښته نخښه د نور ده که پوهېږې
توره شپه په نمر خاته سپینه رڼا کا

له وطنه واته ګران دي په معنی کې
په چمن کې بېحاصله ګل خندا کا

د دوزخ آتش رښتیا کینه د زړه ده
تخم زمکه د دهقان په وخت ریبا کا

(۲۴) صدف کښته د ګوهر بار وړي صد پله !
سبکبار حباب مقام سر د دریا کا

کشکې خدای په زړه کې وکا هومره ستا
چې ته را کړې په خندا بوسه وما

نور به زه له خپله بخته هومره ښاد شم
چې به نه وي همسې ښاد څوک په دنیا

خدای دې تا له خپله عمره برخوردار کا
که قبلیږي په درګاه دعا زما

سرو مال به تر هغه قاصد بلهار کړم

چې سلام را کړي د یارد خولې وما

که یې سم له عمره کاندي بانډې شاهي

په بلبلو باندې د یر منت صبا

نندارہ یې د بلبل یاد بوراوه

چې سبا کا د غونچې کمیس قبا

(۲۵) که اخلاص ورسره نه وي صدیق خو بندی

د وفا په ځای که یار کاندي جفا

ترخه ستا ویل زما ژو ندون دلبر کا

پرورش مې چه په زهرو په شکر کا

حلقه هیڅ ښکاري ددام بې دانې نه بودي

زلفې ستا حلقه د خال تر دانې سر کا

د یر تیره چې تر هر څه رسی هر څه ته

کوم پیدا به خلاص له قیده ستا نظر کا

تشنه لب لکه صدف د سیند په ته یم

د بهار ابر به دا آب گوهر کا

سوی زړه لکه لا له غوارم داغلی

دا فلک هغه په د یر خون جگر کا

لکه موج د دریا په د یر شورش کې

زما نه پیدا وما ته بال وپر کا

هیڅ توپه محبت نه ده را پریښي

اور مدام رښتیا د خار په سر گذر کا

(۲۶) سوز ر ښتیاصدیقه ستا لهسینې سازشو

پختګی خامه میوه په تاو د نمر کا

بخنده لب کشاچون صبح روشن کن جهانی را

که در تاریك خانه نیست عزت مهمانی را

براطراف چمن بگذر که گل از پرده سر بیرون

بر آرد بهر دیدار تو ماننداو نهانی را

ترا در پردهٔ اسرار می جویند می بینند

هزاران آفرین گویند همچون دیدهٔ گانی را

سپردم دل بهردو دیدهٔ او چون ز اوگم شد

شریك دزد گوید مردم پاسبانی را

همیشه توشه ام صبراست بروی زندگی دارم

چو دایم قوت می دارد هما استخوانی را

چې رفت ها است در باد خزان یارب که آن بلبل

همی نالد ز او هم دوست دارد دوستانی را

مهار ناقهٔ لیلی که برد او را بدستش داد

مگر مجنون نصیحت کرده بود آن ساربانی را

بدرد یوسف مصری که از چاه بیرون آورد

عجب طالع مدد کرده خدا آن کاروانی را

خریداران یوسف مرد و زن شاه گدا بودند

مد د بخت زلیخا شد گرفتند مهو شانی را

(۲۷) غزل گفتی صدیق از او همان در فارسی بهتر

در افغان کی توانم دید چون تو درفشانی را

د بلبل نوا پرده د غوږ نچې وا کا

د مجنون مینه تر نمر ښکاره لیلی کا

همیشه آشنا په خواب وینم دی نه وي

معبر مې خواب تعبیر د زلیخا کا

مې که هر څو وي ترخه خواږه یې هم شته

بعد لا د وصالت خواږه پیدا کا

د شهید کفن هم بس خول شهادت دی

له مې خواره څوک طلب زهد تقوی کا

د غمزې شهید عاشق همیشه ژوي

مرده دل طلب دوا د مسیحا کا

(۲۸) ابرو یې به صدیق هیڅ پرې ضایع نه کړم

په منت که خضر را آب بقا کا

که دخلقو په تهمت مو ند لی یار ما

په تندی دی قبول کړی په بار بار ما

که ترسا وا یې وما ته عیب څه دی

چې په غاړه کړ دا ستا زلفې زنار ما

ستا د در خارو خس کل را ته گلزار غی

شه تر دا ليدلی نه دی بل گلزار ما

چا يې وا خيسته نا مه را ته په ژبه

ستا د قد برا بر کله کړ چنار ما

عاشقی په دا ژوندون څکر خونی ده

سخت تر دا ليدلی نه دی بل روزگار ما

دا به هم له غمه ځان په يوه لور کړ

که په لو رې د خلاصی ليدلی لار ما

دريغه داځله ترې روغ سلامت خلاص شوای

نوم په خوله دمينې يادمکړه دوبار ما

لا هغه مزه مې اوس گرځی په خوله کې

چې خبيث بلی (دی) ديار لب ورخسار ما

(۲۹) دصديق ارمان مې درست و يوست له د له

دياری په وعده وا ستاوه ر يبار ما

د سبارا تله څرگند مخ د آفتاب کا

سر به پورته د مرگی اوده له خواب کا

غنيمت فرصت يو دم شي و دا نا ته

شسته مخ الوده گرد د ستر گو آب کا

د جهان له با غه دا حاصل سبا و ری

چې شيشې ډکې په عطرو په گلاب کا

زیست له خلقه په جهان تر نمر ښکاره وی

خوب تر کومه په سینه دا ور کباب کا

زړه تړل تمام په عیش و نشاط هیڅ دی

په چمن را تله دګل پا به رکاب کا

آسوده عاشق له غمه دمحشر شو

هر هوښیار حساب پخوا تر خپل حساب کا

(۳۰) بیداری سړی سحر کاندی صدیقه !

لکه سپی غافل ، په شپه و ویښ سبا خواب کا

تل طلب دآسا یش غفلت رښتیا کا

تلونی زر په د غه لار سر په هوا کا

په طلب مقصد موندده نه شی مقیم دی

سا کنان حصول د لری مدعا کا

اندیښنه له مرګه ډیره نا دانی ده

ځان په خواسړی ترمرګ دمرګ اشنا کا

د حیات په بستر خوب هم د هغووی

چې خپل ځان فنا پخوا ترلا فنا کا

ترقیا مته به هرګز په کښته نه شی

څوک چې سرپورته دصبر په عصا کا

د ضرور حاجت طلب کړه له مجیبه

بې زحمته طبیب کوم د چا دوا کا

(۳۱) په منت د کا تهين او سه صد يقه
چې داخل دی د خطا په خا ی عطا کا

را ښکاره شو نن هغه پری رخسا ر بیا
چې په دین ودل مې اوس کا ندی نا تار بیا

په یوه د یدن یې هر څه له ما یووړل

اوس له خیا له را ته نه کوری دو بار بیا

دما نې په تیغ مې غوښ د ننه زړه کا

دآ شتی په تا ر مې وګنډه ی پر هار بیا

چې هجرا ن زما په زړه کې وښخ کړی

دوصا ل طبیب سې وکیښ هغه خار بیا

خپل وژلی چې شمیرې چا ته ما یاد کړه

چیرې نه له هما ره و با سې ما خوا ر بیا

په خندا دې چې بو سه نن وما را کړه

دا خو هین زه توا نګر کړم تا نیستګار بیا

(۳۲) بس کړه دا چې صدیق ستا ستر ګو ملنګ کړ
نو ر به هه کا د دنیا پسه سخ ر و زګا ر بیا

په چمن چې سرو قده خوبن خرام کا

د قمری غاړې ته طوق خط دجام کا

تر لیلی پرې سینه زیاته یوپه سل کړم

وحشی یارچې ما مجنون و ته خپل رام کا

عشق دښمن رښتیا زما د لب په کام دی

صبر کله څوك د شونډو په سلام کا

مگر نه یم د حرم آهو د لبره !

چې دې تیغ او به په ځان زما حرام کا

واړه ویښې د مغزي دي زما گوره

چې ښکاره یې داشفق په صبح وشام کا

همیشه په نوش کی نیش دزمانې دی

بعد ستاو صال رښتیا ختم تمام کا

(۳۳) لب دشکر په تسبیح دصدیق ښوري

چې د لبر عمر خوښی پرې مستدام کا

چې خندارا ته په ډکه خوله د لدار کا

په بریښنا دغاښو مات در شهوار کا

بیا ها له به یې تشبیه د یار د لب کړم

که پیداچیرته یمن لعل آبدار کا

تر قامت یې سرو کله رسید ی شی

دجهان طعن د زر کې په رفتار کا

غزا له يې له هيبته په کوهسار شي
چې ور پور ته سترګې ډ کې په خما ر کا

په بل چا يې لاصرفه لا يې زړه سوي وی (۱)
دزاهد دزړه په وړه هرګورنا تا ر کا

په ديدن يې د تقوا تو به و لجه وړي
چې ګذر چيرې په کوی د پر هيزګار کا

(۳م) فيض بخش هغه قدم ګڼه صد يقه !
چې يې تله په لور دخاورو لا له زار کا

چې دماغ کبر نګارنه کا نور څه کا
هميشه يې په ماخوا ر نه کا نورڅه کا

څ وصال يې روزي نه وي خوارعاشق دی
چې دغم سره روزګارنه کا نورڅه کا

چې نادان طبيب يې داغ بې خا په کيږدی
که په زور ناره بيمار نه کا نورڅه کا

د بها ر زيری چې و شي په بابلو
چې ديدن ته يې تلوارنه کا نورڅه کا

چې ديار له لو ريه سم جواب پرې راشي
په عاشق منت ريبار نه کا نو ر څه کا

---

(۱) اصل: په بل چا يې لاسرفه لا يې زړه شوی و ی.

که اسرار لکه منصور دچا ښکاره شي
عالمان چې يې په دار نه کا نورڅه کا

چې باران يې د حمل په ابتدا وي
باغ وراغ واړه ګلزار نه کا نورڅه کا

لور په لور واړه بهار دی چې يې ګورې
خوار تو تي چې پرې چغار نه کا نورڅه کا

که شيوه جو نه په زلفو په وربل کا
چې ځوانان يې په دستار نه کا نورڅه کا

معشوقه چې سر طلب کا له عاشقه
خوار خسته عاشق يې زار نه کا نورڅه کا

(۳۵) د بل ځيز محبت نه لري په زړه کې
چې صديق مينه په يار نه کا نورڅه کا

بس د خپل نفس جرس دی چې پيام کا
عمر تله لکه اوبه على الدوام کا

د ځوانۍ چارې سپارل پـه پيرۍ مکړه
پـه تياره تللی پـه لار سبا آرام کا

تيره ډير تـر تيره برق درو مه فنا تـه
د غمزې شهيد ژوند ون حاصل مدام کا

غم ښادي دواړه پيوست سره را دروسي
خوك په څه رنګ جدائي د صبح شام کا

سوين و يښته د مرګي لار سوه نه ښکاره کړه
تګ په هر رهبر وپسې رهرو مدام کا
په ژوندون کي نشانه درسته د مرګ ده
تله تر کومه پورې خوك په سر د بام کا
(۳۶) د صديق آب حيات او به هيڅ نه دی
چې حاصل عمر د خضر غم تمام کا
ښا يسته کښلي تر ګل ديدن نګار را
آشفته زړه تر بلبل په ښه ګلـزار را
چنګ و نـی مي و ساقـی سبـزه د لبره
خدايه ته يې په خپل فضل و ما خوار را
لکه غر چې هرګز ښکته پورته نه شـی
زړه په عشق کي د آشنا هسي قرار را
که دوران مي خېژوی د دار و سرتـه
د منصور غونډې ديدار په سر د دار را
چې بـل غـم بی محبته په کي نه وی
زړه زما سوی سوخته د عشق په نار را
په فرقت د ځان خو بی هومره په دا کړم
د يار خيال وما دايم بوسه کنار را
(۳۷) ته په عشق کې تعليم څه کړی ما صديق ته
تـل په کار د محبت زړه استوار را

روښنايي د آيني غم د غبار کا
دخزان انديښنه تل سبزه بهار کا

د زاهد په زهد کله نام بلند شو
نا مور ميږنه منصور په سر د دار کا

چې جراح يې چېر ته سر کېږدی ما تيږي
اوس زما له نبضه ډير نشتر آزار کا

احتياج د روح په امر کې د رب وی
مصور څه تصوير نقش په ديوار کا

بينايي د زړه په کار ده، نه دستر گو
بعد وصل د يار خيال قرب جوار کا

به غفلت دې د ژوندون هجرت باقی شی
خپل قسمت گردون په بدو ستمگار کا

(۳۸) په زړه ياد يې دوسته نه بو يه صديقه
آه رښتيا د آيني په مخ غبار کا

درد په زړه د محبت سليم کمال را
عشق په مخ د ښايسته کښلي جمال را

چې مې سر تر ي پور ته نه شی تر قيامته
سجده گا محراب د ورځيو په شنه خال را

چې يې سود له ستر گو ستر گې د غزال کړم
ياد په زړه لکه مجنون د ليلا خيال را

غم په عشق کې ستا دځا ن ترغرو نو دېرشو
زړه د ځان له غمه خلاص بې پرو بال را
چې بې تا ذ کر، بل یاد و ما ته نه کا
و حدتې تو تی گو یا بې قیل و قال را
د همت په سنگ به مات وا ړه د زدان کړم
خا لی اوس بې غمه زړه نورو ظلال را
(۳۹) اوس خو هرچې د ه، تیر یږي صدیق گو رم
سا قی جا م آ خر د میو ما لا مال را
د چمن زیب و زینت آ را یش څوك کا
په زینت و آرا یش فرما یش څو ک کا
د ظا هر ستر گې جدا ، با طن جدا د ی
په نظر کې د نظر نما یش څو ک کا
بې د لبره هیڅ په هیڅ کی لیدی نه شی
و یښ په و یښ سره خبرشی خوا هش څوك کا
عشق ترما سوی سوخته دی زه تر عشقه
اور په اور سوی چا نه دی تا بش څوك کا
(۴۰) عشق صد یق ته په تما م جها ن جهان شو
په مجنو ن کې د مجنون جو ا یش څو ک کا
دصبا را تله پیدا خندا د یار کا
دز خمی خاطر گندل دز لفو تار کا

د قیامت رښتیا قیام بیلتو دیار دی
خاروخس خزان‌چمن دلا له‌زار کا

بدوچا ته پیش د ښو په طمع مشه
د یوسف سر اول غم په بهار کا

د پرکار له قیده هیڅوک بیرون‌نه دی
څوک په تیر له‌خپله کامه لیرفتار کا

دغو نچې خندا رښتیا واوره ژړا شي
په هوس به مننه‌کوم سړی هوښیار کا

(۱۰۳) ستا غمو نه د صدیق په حساب نه دی
کله‌څوک به‌د دا سان ریګو نه‌شمار کا

د لر با ! زلفي عنبر ستا
څوک په حال نه دی خبر ستا

چې په حال دې خبر دا روی
هغو دی نیو لی درستا

غم بې نشته پرې ښا دی شوه
په هرچا چې شو نظر ستا

چې ښا د من دې په وصال دی
همیشه دی پرې اختر ستا

تر جنته د ير تيري کا
په کوڅه چې کړم ګذر ستا

سر تر پا په درست هنر یې
عیب نشته بې هنر ستا
خلاص به څوک ترې سلامت وی؟
چې د وه سترګې د ی لښکر ستا
ته چې تل هو سره جفا کړې
وفا خوی نه دی مګر ستا
څه کړم، چا و ته فریاد کړم
چې جفا و ینم اکثر ستا
زه خو وصل له تا غواړم
هم په بحر هم په بر ستا
(۳۲) خوار صدیق ګڼه تو تی شو
ورته بو یه لب شکر ستا
خوش قسمت سترګې دستنې په دنبال کا
چې قبله یې د نظر مزی امال کا
هو نظر کا ته په ملک د پل لیده شی
زړه یې ډېر سوری تر سترګو د غربال کا
ګرد د عشق له کوڅه ستا کیمیا اثر دی
سر هغه دی چې یې ستا په کوی پا یمال کا
له نا دا نه هیڅ هوښیار ګیله منده وی
ګله زار مجنون له سنګه د اطفال کا

طریقت د آزاده همیشه دا دی

له خزانه سروې څرنګک فارغ بال کا

(۳۴) د آسمان په نوش و نیش صدیق خبر یم

چې بلا لاندې ترسیوري د اقبال کا

د صبا نسیم چې ښین په ګلش کا

باغ وراغ واړه رضا په شګفتن کا

ګل ګلاب سمن خوبی د نورو ګلو

ډیر ثنا صفت به کوم لکه سوسن کا

نور بورا ښین په ګلو دی لیده شی

خپله ښینه یې سینه د ګل وطن کا

په هزار ژبه که وایی هزاره دی

برابر یې ثنا کله ښېرهن کا

په دیدن به د هغو ستر ګې خوږې شی

چې نرګس غوندې بېرون سرترکفن کا

د صورت مثال یې شمع نورانی ده

د فانوس جامه یې ځین پیرهن کا

عاشقان ترپتنګانو ډیر تیری دی

چې فنا خپله هستي په تایکتن کا (۱)

---

۱ـ په اصل کې (... پتا لکن کا) دی.

چې يې شا کړه وخپل ځان ته لکه سترګو
هم هغه به دښه يار کښلي د بدن کا

(۳۴) دصديق د بخت مدد رښتينې دا دی
که کوشه يې دخپل يار مولا موطن کا

دصفا قدم دغم د تندی خار کا
هميشه له آيينې نشتر آزار کا

قا فله ددرانه خوب په باردرنه شوه
د فرهاد په تيشه تل نا له کوهسار کا

ازاده دعشق په لار بينوا دروسي
گنج تر پښو لاندی درانه ددنيا دار کا

در د پرېږه عاشقان تللي دي وګورته
ګل په دا چمن پيدا سينه داغدار کا

نگهبان د کښلي مخ په مخ داخط شو
رهزني دزره ښتن دلوی حصار کا

دګريز په پښو آهو په زمکه تښتي
چې شوخي د يار دسترګو نيت دښکار کا

دجهان خاوره خمير آب حيات کړه
بل به کوم يو لکه زه هسي خاکسار کا

(۳۵) چې صديق ته رنګ دزلفو ستا مدد شو
صدقه به يې ترحرف عنبر عطار کا

چې گرد بادیې د دوران افسر په سر کا
بیا یې زر له تورو خاورو سر په سر کا
چې هوا یې د آسمان په پورته یوسي
بیا یې څه رنګه په هوا زیروز بر کا
عاقبت هغه خو له یې که کا په خاورو
پرورده یې چې په شهدو په شکر کا
چې په شیرو په شکر و پرورده شي
هغه مات د نیلګون په غضنفر کا
نام نشان به د هیچا د لته پری نږدی
چرا ګا یې په قبرونو ګاو وخر کا
مګر تـه نـه یې خبر له دې احواله
زمانه په زما نیو څـه حسر کـا
سیاه روی به عاقبت د رومې عقبې ته
څوك چې مینه د دنیا په سیم وزر کا
د دوران په ورکول نادان خوښیږی
دانا کله دسفله په داد باور کـا
چې او به یې نصیبه نه وی څوك څه شي
په طلب که ستري ځان لکه سکندر کا

(۳۶) په طلب د اشنا تل ګرزه صدیقه !
ګوندې وی چې همای ځان در برا بر کا

څوك به څه زخمو نه شمار د زړه زما کا

په حساب به څوك مو جو نه د دریا کا

د شبنم په دود یې ځای شی د نمر ستر گه

چې نظر په هغه ښکلی مخ ز یبا کا

د تسپو گرزول جو ړ ریگ ر و ا ن د ی

څوك به څه ثنا شماره په زړه زما کا

په کا ته په خندا زړ ونه د جهان وړي

په هوس به ستا څوك څه رنگ تماشا کا

د هو سپو سو ا دوا خیست شو له ستر گو

چې نظر مجنو ن په ستر گو د لیلا کا

د سیلاب جلب ریښتیا دی پخپل واك کې

په وعده به څو ك د ښکلیو تقا ضا کا

مگر خیا ل د یا ر ر هبر شی لکه خضر

او که نه تو به څوك څه رنگ له صحرا کا

(۳۷) بلبلا نو ته چمن پر یږ د ه صد یقه !

څوك به څه د هسې خلك مدا را کا

نشته هسې زړه چې په مخ نه دی مینه دا رستا

ښکلی تر یوسف یې درست جها ن د ی خر یدارستا

سخ د هغې خو لې دی چې له تا به گفتگوی کا

سخ د هغو ستر گو چې په ځیر گو رې د یدا ر ستا

ځار دې ترړا تلو شم په خندا ، خندا را دروسه
ډېر منت را با ندې دراتلو دې په بار بار ستا

هيڅ پرې نه پوهيږم چې وخه ته يې تشبيه کړم
زلفې دې که مار دې که سنبل دې د کوهسار ستا

(۳۸) درد دی که صحت دی چې صديق پرې مبتلا شو
پرخه په گلزار ده که خولې دې په گلزار ستا

چې بې شکلې مخه څوک را ته مذکور کا
بېهوده خلک په ما ستم ضرور کا

د خپل يار ستر گو مې صبر له زړه يوړ
دا بې صبره زړه به څوک زما صبور کا

په هغو ستر گو به خوب کله ور د روړ مې
چې د يار شکلی قامت په کې مسطور کا

هم هغه به وي زړه صبر کا د ياره
چې له ستر گو نه جدا د ستر گو نور کا

بې له شو شکليو د لېرو نور په خدا پوه
که مې زړه سينه په حورو په قصور کا

په اميد يې د وفا هوسره جفا وړم
مزدوري مو مې هغه چې ځان مزدور کا

د وصال و صبحدم ته په اميد شي
د هجران شپه (۱) چې تيره په مهجور کا

---

(۱) په اصل کې «شپه» هم لوستل کيږي .

په یـرغ جدا یی کلـمه شی له یاره

څوك به سرې لمبې قبولې د تنور کا

زه به هم د هر نا صح نصیحت و اخلم

کشکې روغ د لیونی و یل منظور کا

شیخه! ته زهد و تقوی کړه ـ زه به سی څښم

هر بنده به خپل عمل په خپل د ستور کا

(۹۳) د دنیا په مخ ژوندي څه دي په خدا یږو

د صدیق په غم ژړا اهل قبور کا

په هر څه کې ښکـلی مخ را ته نما کـا

ربـوده خـاطـر لـه مـا نـه دلـربا کـا

که یې ستر کې د یـقـین ورته دي کـوره

که په زره کې مخ څرګند ، ګاه په قبا کا

زړه مې درست را څخه یو ز ، ما سره دی

هم له ما سره میـشـتـه هم په صحرا کـا

که د حور و پیدا یښت را څر ګند نه و

څه جلوه په هغه ځای د لبر زما کا

په هر زره چې ګذر کا زره او به کیږی

شرم د یږ له خپله شرمه ، له حیا کا

په یقین زما هر ګوره لوی در یاب دی

د سراب د ریـاب نمـود ګله بـقـا کـا

لکه نمر خر گنده لار د حقیقت شوه
په دالار منزل د و راندې رهنما کا

یك تنها بې پر و بال له ازاد دروه ی
غر همت را ته تهٔ سیوری د هما کا

(٥٠) فراغت صدیق په عشق کې کله مومم
خو قبله شته پری سجو د قبله نما کا

که شکاره په مخ عنبرا فشان گیسو کا
په جهان به قدر کم د مشکبو کا

لکه جام د جم جهان به په کې گوري
چې نظر د یار په خال او په ابرو کا

په طلب ستا د یدن همیشه گرزي
په هر ځای کې چې قمري ناره کو کو کا

نه خوبی د هغه د رنگ نه تمام عمر
چې دلبر مې درست له ځانه همزانو کا

(٥١) ملا ئلك خبر دار هیڅ نه دي له حاله
چې صدیق جواب له یاره رو برو کا

چې بې خدا په خوك د زره سینه په چا کا
سرا سر به لکه زه هسې خطا کا

حقیقت به د مجاز په ؤ به وا یم
هر سړی د ښځه خو غوږ په دا ویښا کا

د رقیب تر نیکی د اښه را ښکار یږي
که هزار ځله دلبر جور و جفا کا

د لیلی نامه که اخلی پرې به ښا یی
که مجنون غوندې په خلك ځان رسوا کا

چې په نه دیدن یې هسې ځلبلا زد یم
په لیدو مې به زړه لا پسې بلا کا

مګر خدای زما آزار د یار خوښی کړه
څو چې زه پری ژهیر یږم هغه لا کا

دو صال قدر هجران راته ښکاره کا
د خوږو قدر رښتیا ترخه پیدا کا

که هزار ځله یار بد کا په دا خه شي
زړه مې بیاد یا رو لور ته تمنا کا

د ین دنیا که صدقه کړم ځني لږ ده
خدای د ې ماو ته سود سنه دا سودا کا

(۵۳) وصدیق ته رهسې ښکلی ښکاره نه دی
چې بې تا ما ته دزړه مینه په چا کا

په هر زړه ویل اثر د دل افګار کا
بوی نسیم سا ده ګلونه دګلزار کا

ننداره مې کړه په پټه خبر نه وم
آینه مې دګوهر په زړه زنګار کا

خیانت په پټه کړه ـ خبر جهان شو

غل په شپه نیولی ورځ تل په بازار کا

ساده عقل په فریب مستی ته شا کړه

چې خبر شوم محتسب حد په هوښیار کا

د لاله په خون (١) پرواد بهار نښته

کوم قدم به پیر زو ستا په ما رفتار کا

بې ثمره سروې یار رښتیا د زړه وی

دو د لی سړی رښتیا د کار بیکار کا

په ژړا مې د ې زړه تش کړم لاحیران شوم

سینه بند ژبه په لوی لنګر خو نخوار کا

دزړه نصیحت ځوان سعاد تمند وړی

تل هوښیار آسان کار و نه څه د شوار کا

(٥٣) سینې اوړه زړه کې ایښې د صدیق دی
د مغز و تاو یې اور پور ې په دستار کا

په اول د آشنا یې چې بنیاد کا

هم هغه یې له هجرا نه ډیر فریاد کا

دوصال خوا ږه چې و خوری یو په سله

د هجران تلخي یې هو مره زړه ناښاد کا

څوچې وصل د عاشق په خاطر ګرزی

زما نه ورته غمو نه هومره زړه یاد کا

---

١ـ د (خون) پرځای (جوش یا خو بش) هم لوستل کیږی .

په یاران چې یو تر بل سره جارېږی
زمانه به یې څه زر په بل هیوا د کا
چې خپل مراد ځینې هیچاموندلی نه دی
دا گردون به څه پوره زما په مراد کا
په ارمان ارمان جدا یم له یارا نو
هی تو به دوران مې لا پسې احداد کا
چې راضی يې ومردن ته دخپل ځان کړم
وا ړه مینه په ما چارې د فرها د کا
هم هغه خلک و ما ته لیو نی د ی
چې بې مینې را ته بل حرف ارشاد کا
(م ه) تر و صال یې لا خوشې ځینې بیا مو مې
چې صدیق په زړه کې خیال د آشنایاد کا
داغ په زړه د محبت در د من دوا کا
پرخه تل خو بی د گل په مخ پیدا کا
در د مې ستا د محبت په در د صحت شی
یو مبه داغ طلب د څه یهه په ما کا
د استاد په تربیت شاگرد استاد شی
مجنون یا د خلک تر عشق پورې زما کا
دزړو پـه نصیحت زاړه ځـــوانیږی
تر بیت د کودك پورنادا ن دانا کـــا

دردپه زړه دننه تل دعاشق دود وی

چې پرهار غوړيدې پهو آزه خولهخندا کا

ستا دعشق زره رښتيا ترنهرزيا تيرى

دطاعت ترر تېږي عشق پور ته دعوا کا

دچمن پهلوردې تله عين كرم دى

(٥٥) چې دې خاورې د تلي صديق تو تيا کا

لا به کله هغه مخ دلبر نما کا

چې مې زړه زما د يدنو ته بلا کا

په اميدې دوصال دزړه قرار ځي

خوب له سترگو دې آرام لهما جدا کا

ترهغه قاصد بهځا رځا نوجهان کړم

چې په مازورى دراغلو د آشنا کا

دهغه آشنا منت را باندې باردى

چې پيغام را ته پهژ به دصبا کـــا

په رښتيا مې هم هغه دين ومذهب شى

چې مجنون تهڅوك خبره دليلا کا

چې گذرمې دنسيم غونډې پرې وشى

رنگارنگ غونچې گلو نه چمن وا کا

چې د يار د تلې خاورى څى صديقه !

(٥٦) هم هغه جهان دې سترگو ته توتيا کا

* **

دخوېل نس په لاس جلب واړه مردان کا

دنفس ذکر په شمار اهل عرفان کا

د نفس په تله را تله عمر کمېږی

لوړ ژور کا لی په مښل همو ارسو هان کا

عمر لاړ په سخت روزگار نرم پری نه شو

لطافت دژ بې کوم حاصل د ندان کا

په طلب ضایع آبرو د مطلب مکړه

په منت به څوک قبول آب حیوان کا

کله لېو منل دنفس د ورشی صدیق ته

(٥٧) يو بخری په څه گمله کی اور تو فان کا

* **

چې عیبونه دجهان واړه تر شا کا

هم هغه به د دلبري تما شا کا

په يوه د يدن اندوه له زړه نه يوسی

د مدد هغه مشکل واړه په شا کا

ترصفت به يې دخال رسيدی نه شی

عطارد که په فلک پور ته انشا کا

تر يو سفه يو په سله ښا يسته يې

نور به څوک په خپل ځا ښت دزړه نشا کا

(٥٨) دحیوان چشمه ده خوله دیار صدیقه !

خال يې خضرشو- پيا له به درڅښا کا

چې په درست تومن اوځاردی یار زما
ځکه د یر د زړه پکار دی یار زما

د بهار ګلو نه ده و ته تسلیم دي
چې بهتر تر هر ګلزار دی یار زما

په یوه دیدن یې زه پادشاه دوخت کړم
دخپل داد کله په شمار دی یار زما

له دې هسې یاره صبر زه په څه کړم
چې په خوی بد نیکو کار دی یار زما

دجهان غم یې وما ته دی سپار لی
نن له غمه درست اوزګار دی یار زما

په ما نې ما نې مې مرګ و ته نژدې کا
په زړه هو مره ستمکار دی یار زما

زار به زه له هسې یاره کړم و چا ته
چې یو څه رنګ نا قرار دی یار زما

په ژړا یې دزړه سوی کله په ماشي
په زړه هو مره سنګخار دی یار زما

(۵۹) زه صدیق ور با ندې ځه چې عندلیت یم
چې په مخ تمام ګلزار دی یار زما

* * *

ستر ګې ستاواړه پخپله خپل ګفتار کا
بیخودی رښتیا ځرګنده تل بیمار کا

رزق جمله اهل نظر په نظر گوری

روزي ده (۱) د آینی روزی د پدار کا

سجده گاه یې د آسمان خاوره د پښوشی

منع خوب چې څوك له سترگو ځزه بیدار کا

چې دې خیال د سو دا هیڅ اشته په سر کې

یوسف څه شی که تل سیر په بازار کا

مرده دل په حساب کله دژوندی دی

تل په سر باغبان د گل خاورو د یوار کا

عقل، هوښ، صبر مجنون ته په خس گران دی

غم نادان په نادانی مل د هوښیار کا

(۹۰) د منصور په سر د دار وصال لیده شی

د بهار سیر صدیق په سر د خار شی

ربه ته دعشق په کار کې محبت را

مهرو سینه محبت په ډیر همت را

غیر فکر مې بیرن کړه له خاطره

درست همت وما دعشق په منزلت را

چې بوځو ورځې صفت د مین وکړم

په دنیا کې مرگه! هومره ته مهلت را

نور اعضا مې مقابل دخپل خدمت کړه

دا خامه ژبه لا یقه د صفت را

---

۱ - روزی ده = روزی ور کوونکی

چې په هرلوری نظر کړم آشنا وینم
په باطن کې رڼا نور د معرفت را

هم هغه چې یې نجات شی په دارین
اوس و ما هغه ناصحه! نصحت را

چې یې خوده دیوانه شم په نوشل یې
ساقي! هسې پیاله ته پر برکت را

چې مې بل گوري ویار ته زما مرگ وي
په دا کار کې ربه زړه ډیر په غیرت را

(٦١) محبت د آشنا زړه د صدیق گوری
نور په شناخت د محبت زړه په صحت را

* * *

که له ما سره جفا هغه صنم کا
پرې راضی یم که یې تل له عمره سم کا

په دا هم زړه له نا کامه واهم لړ دی
چې د شکلیو عمر خدای له خضره سم کا

ترتو تیا یې لا تیری گنم باور کړه
که آشنارا پیر زو خاوره د قدم کا

که وفارا ښخه غوا رې سر مې پرې کړه
کاتب خط ښه کښی هغه چې قط قلم کا

په گو گل کې می زړه درست پسې خم خم شی
چې صبا یې په بارخو زلفې خم خم کا

ما وېزه يې نن مذکور دخط وخال کړم
دا مذکور يې کور ، مهلت ، کلي ، هر چم کا

لکه زه يې نن اخته دعشق په غم کړم
خدای دی درست جهان اخته په هسې غم کا

په هر دم کې راسره يې خدای دي وينې
دم مې مه وه که جدا دي له مادم کا

(٦٢) يو تهمت دهرنا کس ـ بل جدايي شوه
دېر گردون په صديق لا هسې ستم کا

***

ليونی هوښيار به هيڅرې سازنه کا
زاغ په باغ کې د بلبلې آواز نه کا

دزاهد له ميخواری سره زيست نشته
شيشه کانی په قربت کې دمساز نه کا

په نزول د بلا صبر خاموشي کړه
غشي خلاص را تله وژی و ته باز نه کا

په خندا دزرکې کل حاصل د بازوي
پته خوله طلب د زرکې شهباز نه کا

غم رښتيا دی په ښادمن خاطر نزول شي
خنده رو په زمانه سر فراز نه کا

داستا د په لاس پر کار بې قیده نه وي

تیر سړی مطلب د زړه تر انداز نه کا

(٦٣) د کریم کرم هر لور په صدیق ډیر دی

قصر سینه د محمود په ایاز نه کا

***

همیشه په کور، په کلي، په صحرا

د مجنـو ن ناره همه لیلا لیـلا

گوره څو مدت هغه تر دا تیر یږي

د فرهاد په بیستون کې شته صدا

واوره اور د محبت دی په هر څه کې

که خندا وي که ژړا په وا و یلا

تر توتیا را ته تیری دی زه پوهیږم

که یا رخا و ره د تلې را کا د پا

د همای تر سیوری ښه را څرگندیږي

که سایه و کا د استا زلفې په سـا

(٦٤) طبیبان په هر بلا د رنځ علاج کـا

د صدیق د رنځ پرهـر نه‌شي د وا

ستا خرام آرام له ما آتش عنان کا

ډیر حجاب له آینې آب روان کـا

نور دې لمر جاروا ته نه کا بې زوا له

څوك به‌څو قرله قرین په‌داخا کدان کا

خریدار ته هیچ نقصان ملاحظه نه کا
څوك به ښه متاع فروخت په رایګان کا
سزاوار دخندا ښه‌چې سره اوسوین دی
زندانی ګوره څو فخر په زندان کا
(٦٥) لکه نوې میاشت عزیز به‌وي صدیقه !
هر سړی چې پیروی د پاك قرآن کا
په را تله دخط شکست ښایست دیار کا
دخزان را تله تالا تمام بهار کا
د ښه حسن شان رښتیا د مسافر وي
دمنزل راهرو په تلو با ندې تلوار کا
چې یې ویره د ښو له سیوری تل وه
خط‌هغه نازنین مخ هسې داغدار کا
هسی تور لکه تور مشك تم معطردی
هرو ښته ته یې تعظیم بنفشه زار کا
د سپوی سینه رښتیا څنې خالی شی
چه بازار ته جوړه لار درشهوار کا
لوړژور هموار تردا په‌هور ته نشته
چې قدم سیلاب پر سمه خپل رفتار کا
د لحد خښتې کودی به‌مې دخم شی
چې مې عمر تیر د میو په خمار کا
(٦٦) د صدیق دعمر تله‌څرګند ترنمردی
لکه برق هسې را تله تله د بهار کا

مخ چې نمر غوندې صبا دلبر ښکاره کا
د غوټچې پر ده حجاب په مخ پاره کا

د چمن گوښه خالی ده له فرحته
کوم هوښيار به د غمجنو ننداره کا

د غمجنو آشنا بی حاصل د غم دی
څوک به ښاد خاطر د غم په اجاره کا

د بلبلو ژړا گوره په خزان کې
زاقرار او ده په خوب کې په ناره کا

دقضا په تيغ هر چاد ی گردن ايښی
زورور ته بې تسليمه څوک چاره کا

چې ارباب د هدالت په مسند کښېنی
د اندوه ورځ به فرح بې شماره کا

پرورده (بې) دحنظل په شير جهان دی
وا په مکر د گردون په گهواره کا

د توتيا اثر بــه هيڅ تري پيدا نه شي
که ميده په سترگو څوک سنگ خاره کا

(٦٧) آپنده صديق خيريت له خدايه غواړی
څه بــه غـم د تللــی عمـــر دو بــاره کــا

* * *

څوک به عمر تللی بيار ته وماړا کا
څوک به څو تمه ژوندون په دا دنيا کا

دځوانۍ قد رڅرګند درست په پیرۍ شي
دپرون هوس ، ارمان نن څه وفا کا

طبیعت د سفله عین د آسمان دی
اخلی وار په وار هغه چې ومارا کا

د احسان لاس به کوتاه تل دد ښمن وی
فلک کوم ګردش دچا په مدعا کا

د آرمان داغ به په زړه کې د بلبل وی
با د په ګل چې د چمن ګذر صبا کا

(٦٨) په هجران کې صدیق لار دوصال ګورم
د یوسف را تله قسمت یعقوب ته بیا کا

***

تاب دزلفو دې سنبل په څره بیتاب کا
غرو مخ تـه پـر ده ابر د حجاب کا

ستا ترلعلو لبو هیڅ لعل و مرجان شي
مات قیمت غا ښـو نه ستا در نایاب کا

تور ه شپه ربښکیار نا کا په کور شمع
درست جهان رڼا د شپې مخ دمهتاب کا

دهوښیار نظر د عمر په تیر تله شي
تله دعمر تیر تر برقه لا شتاب کا

ناخدای جهاز په روی ددریاب بیا یی

درطلب غواص په تحت د دریاب کا

(۶۹) په یوه کې ځای د بل حرف صوت نشته

خوشحال استاد صدیق ته دا امر کتاب کا

ته چې دا لب و دندان لرې ز یبا

شایسته درو مرجـان لـرې زیبا

په کا ته دې آینه تمام گلزار شی

چې عجب مخ تر بوستان لرې زیبا

دادی مخ ښکاره دزلفو تر حلقه شو

که په چاه میر کنعان لرې زیبا

درست جهان کا ته هم ستا کا ندی په ستر گو

پټ څرگند گوری چشمان لرې زیبا

(۷۰) که تمام خلك ته این وان زیبا دی

ته صدیق ته ځان چندان لرې زیبا

تشنه لب مې د اسرار شراب سیراب کا

دگوهرو موسی گنج چې ځان خراب کا

هیڅ په ځای دخاموشی په نقطه نه شی

د خوشحال یاد په کور کې وا عاقل کتاب کا

بو په صاف کړی زړه دخوشحال زړه په پرده کی

زنده دل کله په ځان د راحت خواب کا

د هوا په ترك ښتيا واصل ديـــار شي
په پريښو هوا دخان حساب در ياب كـــا
د گوهر د كان رښتيا ابر نيسان دى
درست لو گـى پيدا بخـار تمام سحاب كـــا
دنا دان خندا د عشق په ابتدا شي
ميده ما لگه خلق فرش د كباب كا (١)
خبر دار چې داخر عمر په كار وى
هم هغه اول دخپل دفتر حساب كا
د پرينه دولت رښتيا ترپيرى بهه دى
ښه خوښى بهخوك پهعهدد شباب كا (٢)
(٧١) په معنى بهدي هوښيار پوهشى صديقه !
بوى ترگل اول دانه بوى دگلاب كا
انديښنه له سينده كله سبكبار كا
خس موجونه ددرياب زرپه كنار كا
د نيكانو په صحبت بدان رسوا شي
ترخه د پرخوا پهخرگند پهشكر بار كا
د بدانو ويل هيڅ راته بد نــــه وى
ښه پروا مړى د زخم په آزار كا

---

(١) دغه اوورپښې د ده بيتو نه په اصل كې د (٧٨) غزل په پاى كې راغلى دى.
(٢) په اصل كې د بهه په ځاى بتر راغلى دى.

غشي زينگه ليندہ نخښي ته‌ژر بوځي
دمنصور وصال نژدي پرسرد دار کا

په‌خدمت ولاړ اسمان درست د هغوی
شکسته چې خپل گردن دوړ تر زناركا

چې او به دشرم نه لري په ستر گو
زرخرگند تر پردي‌ځان‌خپل شرمسار کا

آه له درده دصد يق په سحر گوره
(۷۲) په چمن لا له خرگند سينه داغدار کا

* **

روغ هو ښيار نگاه دیار مې ديوانه کا
کا ته مخ آ ينه ستا نگار خانه کا

د ليلا ستر گې جنون بخښي مجنون ته
رندا نه مينه رښتيا په رندانـه کـا

هميشه لهماسره ـ له ما جدا وي
خيا ل ز ما دلبر و ما ته همخانه کا

لب مې هيڅري بې لبو د يار نه وي
يوه ځښم سا قي را بله پيما نه کا

زړه مې ورك په کې طلب کا نه يې موسی
مشا طه يې زلفې څوپه مخ شانه کا

پریشانی طلب رښتیا د جمعیت شوه

د داني طلب نا دان په ویرا نه کا

برهمن غو ندي صنم ته په سجود یم

محبت کعبه و ما ته بتخانه کا

د مطرب منت به هیڅ د اواز نه وړی

څوك چې غوږاوس د بلبل په ترانه کا

لکه ګرد تر عرش د پاسه به مقیم شی

(۷۳) که دلبر د صد یق سر په آستا نه کا

* * *

ساقی اوس پیاله له میو دا سرار را

په رضايې دخپل زړه په رای سرشار را

په هروار تلخی د میو خوله تر خه کا

صاف و درد هرڅه چې وي په یوه وار را

په خپل در کې نا امید شوم له صحته

هر طلب پوره دزړه و ما بیما را

که د بل چا قبول نشته عیب څه دی

قبول زما په زړه و ما د یار را

نه مې ملك د سلیما ن په کار، نه جام دی

لاس و منبل ته ددې خوږ خاطر افګارورا

يا دزره د ر دو نه سهل را څرګند کړه

يا مدد تمام کمال د درد په کار را

(۷۴) که په عشق کې صديق ستاعين منصور يم (۱)

لبا لب پيا له د وصل سر د دار را

چې شراب د بېهو شی را دصفات کا

جوړ مې ستر ګوته رانجه هين دوات کا

د ادم دلارې ګردمې په تن پروت دی

درست زما په حوادث کا تب برات کا

دادب مهر په لب د خاموشی پر دم

رو خـر ګند خضر و ما ته د حيات کا

نور د مهرو ماه بې تا منور نه دی

په غنی لازم واجب اول زکات کا

(۷۵) ستر ګې وا چې ما صديق په دا چمن کړې

بو ټی، ګل، پاڼه خوشته درست حرکات کا

* * *

---

۱ ـ دا بيت د (۸۲) غزل دمقطع په ځای راغلی د قافيې له مخې د هغه غزل دمقطع سره بدل شو .

آه په زړه د هر دردمن هومره اثر کا
لکه نی سوخته په داغ با ندې ځیگر کا
د شهید قبر منت د شمعې نه وړی
لعل تل په تورو خاورو کې ځان ور کا
حد یې لا د ښا یست زیاتځه چې یې وایم
مخ د نمر له ښکلیه نور ه منور کا
د ختا آهوی تل په طلب گرځی
تور عنبره بوی د زلفو نا سور کا
(۷۶) بوی دسوی زړه له آه سره بیرون کا
تل بخارد گل په ابر صدیق نمر کا

* * *

ستا په عشق کې مې آرام بې آرامی کا
د شفا له دا غه ډار اوم په خامی کا
چې حلقې د زلفو جوړې کاو دام ته
ستا د سترگو صیا د خو پخته کامی کا
لوی هنر یې د نیول په احتیاط وی
چې په بند مرغه هوښیار دانه دامی کا

په صاف زړه ساقي چې صاف ونورو ورکړ

مستي لا تر صاف نوشان درد آشامي کا

(۷۷) منصور سر د دار په سر لاړ نامور شو

صديق څه ازدوه دعشق په بدنامي کا

* * *

اوس به بيا راته ښکاره ښکلي جمال کا

چې خاته مې د يوسف سورت په فال کا

د جهان خوبي الطاف ورسره راوړي

چې گذر دې په کوڅه باندې شمال کا

د څنبۍ په گل شبنم پر يو ب حيران يم

داغ په مخ د آيينې آب زلال کا

چې زړه په کې هيڅ پرې نږد م له مينې

ساقي جام د ميو را بـل ما لا مال کا

پسول سي نور د جهان ښکليو ته بخښلي

ما ته بس کړه زيب چې ستا دا برو خال کا

سر د فکر په لب لا ر خندا طلب وي

تبسم ته غونچه جوړ ځان په اشکال کا

(۷۸) د صديق په وجو د طمع د غم مه کړه

که جراح يې نشتر درست مات په قيفال کا (۲)

---

۲ ـ دا بيت په اصل نسخه کې د (۷۱) غزل مقطع دی .

سینه زور د محبت په تن څر ګند کا
سینه د اغلاله په اور چمن څرګندکا
دغمز و په توره مړه واړه ژو ندی دی
په محشر به شهید خپل ګفن څر ګند کا
چې دعشق په و ادی سر، بوښتم ، وما ته
نخښه ستا کوځه دیار وطن څرګند کا
ستا دستر ګو قاضی ما سپاری مد د ته
په مفتی حکم زما کشتن څر ګند کا
له حیرته څو بیتا به په څو تاب شی
چې دې ز لفې په سنبل سمن (۲) څر ګند کا
ګویا یی مې له همجنسه په فرصت شی
چې تو تی په آینه بدن څر ګند کا
حیرانی مې د صدیق په نادانی د ه
(۷۹) چې دیار په خوله دیار سخن څرګند کا

* * *

د دوران ګردش هر ګور ستم اظهار کا
چې شکست دیار دحسن په بازار کا
په ساده لوحه یې خط جلوه نمای شو
کوم استادی چې دانش په پر کار کا

---

۲-په اصل کې دسمن په ځای (سلن ) لیکل شوی دی

چې یې زخم په مخ سوری د ښه و شي
هم هغه نازنین مخ گوره داغدار کا

چې یې حسن تنګ د مشکو په بازار شي
عنبرین نسیم گذر په لاله زار کا

په پیاله کې د هغو د مغزی مې چښم (۳)
چې خبر پرې د محشر په و رخ خمار کا

پریشانی به د هغه زلفو تر کومه وایې
که یوه ژبه بلبله صد هزار کا

د نیسان د ابر د ګیر منت په مادی
چې په غم زما ژړا د ر هوار کا

د دوران په حسد درست صد یق پو هیږم
(۸۰) چې ژاله تو یه له ابره په بهار کا

* * *

ستا د زلفو بوی به ما هسې شیدا کا
ستا د حسن غیر به ما تر نمر والا کا

هغه بوی چې ستا د زلفو نسیم راوړی
اوس په خلک بوی د مشکو ناروا کا

د بلبل د پاره گل په چمن راغی
په کا ته یې صبا څکه مرحبا کا

---

۳- همد اسې لیکل شوی دی .

هغه څو کړ ترسا غریب چې شته په ښهر

ځان دې سم په تنها یې ترسا تنها کا

عشق ښهره ترنمر والادرو سې صدیقه

سر ښندل منصور ددا ر په سر فتوا کا (۱)

گفتگو چې په پرده کې دا سرارکا

هغه څو ښ خاطر دوصل په دیدار کا

مشاطه یې مخ تروت دې سنځ گوری

گل نمود په رخنه لا ښه دد یوار کا

رونده په لوړ زور تصد یعه کیږی

تیغ رښتیا لو ړوزور سو هان هموار کا

گا ه د گل له خنکه ناست گهی د نمروی

شبنم واره بیدا ری وصل د یار کا

په طلب سو ندل رښتیا دخپل مطلب شی

دمنصور وصل رښتیا په سرد دار کا

بیهو ده خندا حاصل گنه زیان دی

گل خنداد هرچا جوره ځان ته لار کا

په غفلت کې عزیز عمر لاړ صد یقه !

گو ندې خدای قبول په فضل استغفار کا (۸۱)

* * *

---

یادونه : دغه بیت د (۳۷) غزل د مقطع په ځای راغلی د وا فې له مخې د لته راوړل شو .

گړندی عمر تر برق تله په شتاب کا

څوک به زره تړل دعمر په شباب کا

که په ستر گو دیلتین و رته نظر کړې

په چمن را تله دگل پڼه په رکاب کا

پریشانی په جمعیت کې خود لیده شي

څوک به جمع خور دطول امل کتاب کا

لېژوندون وساته ډیر په ډیر غفلت شو

خود به ډیر را ته د لېژوندون حساب کا

په غفلت عمر صدیق واړه بر باد کړ

څوک به بای بیهوده عمر انتخاب کا

* * *

ځار تر ستر گو درښتیا عاشقان جواب کا

زړه په ډیر بلا د زلفو پیچ و تاب کا

بیداری د دیدن منع هر گز نـه شوه

شبنم وصل ځکه ځان خپل د آفتاب کا

د لیلا حسن مجنون په پرده وینی

مخ به پټ کله په څه لهچا سهتاب کا

له حیا د گل بلبل سر په پر نغاړی

لهحیا به تیر عاشق دیار حجاب کا

مې مې واړه ميخو ارا نو ته بخښلي
نشته کار دستر گو ستا تير تر شراب کا

(۸۲) که هوايې ددوران په خاطر گرځې
داهمت دې دصد يق طلب احباب کا

* * *

ترخزان پخوا دې رنگ ته شام بهار کا
ځوان دې نن تمام په ځان دصبا کار کا
چې تر لې لاس روان شو مرگ ته خضر
بل به څوک وي چې په داژوندون اعتبار کا
دژوندون نفس شماره په مرگ پوره شي
تگ تر کومه پورې څوک چې په د يوار کا
چې توبرقه په شتاب تله دی د عمر
روند ه څکه د تلوپه لار تلوار کا
ډير په تله دنا هموارې لا ر ه سم شي
لو ړژور کا لی رښتيا سوهان هموار کا
د وصال اميد قريب گڼه تر مو ته
څوك به وصل دمنصور په سردار کا

(۸۳) دافتاب قربت هغه مو سی صد يقه
چې شبنم غوندې په گلو ځان بيدار کا

* * *

نو ر د نمر کله نقصان گردو غبار کا

کم له د له کوم غماز مهر د یار کا

سینه هیڅ ژړا ز ما له د له نـه وړی

اور په ورك کله له کانړی نه آبشار کا

چې یې ما ر د تعلق پر ېښوه آز ا د شو

په خزان بهسر و کم کله بها ر کا

(۸۳) مینې ستا کعبه صد یق ته بتخانه کړه

ښه په ځوکړا ته ترکو یه ستا گلزا ر کا

* * *

دغمزې تورې ته تاب کله څوك ستا کا

آ ینه صیقل جو هر ته چې قبا کا

خا رمدا م نازك قدم پدی په حنا کې

څه ا ندوه د خا ره چا چې اور تر پا کا

د تقدیر ساعت په غم مبدل نـه شی

څه پروا استاد له چینه د بوریا کا

پوزسان را حتظا هر و با طن نشته

څه حکمو نه په سلکونو څو ك دچا کا

د دوښمن خا موشی لوی مکرو فریب دی

مار گذا رآخر په ښه بانډې قضا کا

دا شورین عمر خو ورځې غنیمت دی
هر ناد ان یې بای په سینه دد نیا کا
د دښمن دوستـی امید مکړه صد یقـه
(۸۵) کوم هوښیار او به له کا نی تمنا کا

* * *

که له شرمه حسن ستا مخ په نقاب کا
مین ستا له حیـا لا دیـده پـر آب کـا
که جهازمې تباهي اوس په ساحل شو
تل د ریاب خطر د ستر گو د حسا ب کا
د قیامت نزول له سوزه ستاد عشق دی
دردوزره مې په محشر هرگوربیتاب کا
سرگشته طالع بلبله د گلشن شی
چې نقاب د هر غونچې مخ د افتاب کا
که مجنون د عشق په لار په شمار د گرد شو
د سر به لاز ما غمو نه په حسا ب کا
چې طلب د خپل مطلب لری خراب شی
گنج رښتیا دی چې طلب پسې خراب کا
که د زړه و ینې صدیق له درده ژاړی
(۸۶) نم رښتیا بیرون له زړه اورد کباب کا

* * *

میخواره چې ساقي ستامنت د جام کا
دارام طلب له دوره د ایام کا

د فرقت پروا یې هیڅ دا فت نه وی
د فنا په جام حاصل ژوندون تمام کا

دحیات اوبه یې زهر شي په لاس کې
فرق څوک دیار د لبو، د دشنام کا

په امید مې دو صال کا و سبا ته
په امید مې مبدل صبح په شام کا

غوږ په څه د بل جرس اواز ته نسیم
د نغمې جرس و ما ته بس پیام کا

ډیر په لږعمر ډیر غم په مرګ راضي کړم
خضر وینم څو ډیر ژوی ډیر نا کام کا

دمغان په میخانه صد یق سا کن شو
(۸۷) ساقي هر کله پرې داد دمیو جام کا

* * *

پریو تو ته جوړ د ولت سړی پریوان کا
تل زوال د نمر ګردش تمام اسمان کا

چې په لږعمر امید د ډیر هوس کړي
په چمن راتله د ګل په ځان خزان کا

تیر نفس چه‌رې بې یاد ود یار مکړه
همیشه هوښیار سپلمه راضي روان کا

حق ناحق ژوی تر مرگه پورې دروسی
ومنزل ته رسیده تل ر هر وا ن کا

هیڅ هوښیار قدم بې ځایه ایښې نه‌دی
په‌حساب به تیر نفس اهل عرفان کا

په قفس کې توتي بند کله راضي‌وی
کوم هوس به په‌ژوند ون کې زاهدان کا

پښیماني تر پښیماني دویه اول کړې
دارمان په‌وخت فایده کله ارمان کا

د خواني‌طاعت موقوف په پیری مکړه
د توانگر کار و نه کله هر ناتوان کا

(۸۸) په صدیق بې کوځې‌ستا ، جهان زندان‌وی
زندانی فراغت کله په زندان کا

خو په‌نس کړې‌رحم زیاد ، هومره جفا کا
کشتنی‌شی پسې‌چې خوپسری اشنا کا

آس پخول حکم‌سر کش په‌سخت لجام شی
ترسری نیو لی هان مار و عصا کا

دمطلب طلب له‌خلکه‌عین مرگ دی
ناخدای نیولی لاس دوب په دریا کا

استغنا جمع بې دوسته بې نيازى ده
سزاوار داور په تن نقش گو يا کا
د پتنگ په سو لو نو ر دچراغ ډېر شي
مخ ر ښتيا د آ ينې اخگر صفا کا
شگفتن د گل هغه زمان خزا ن وى
تل په وازه خوله سرى خندا ژړا کا
دجهان و فا يې هيڅ شوه سا صد يق ته
(۸۹) تل جدا شبنم له گل د نمر هو ا کا
په غذ اب ا لفت دې خلك فرزا نه کا
بېگا نه رو ز گا ر رښتيا د بېگا نه کا
ليونى ته ليونتوب کا ر دهوښيا روى
خوش په کا ر کله هوښيار د ديوا نه کا
په کرم د گنا هگا ر تکيه په خدا ى وى
رو د زره ميخور د پېر په ميخا نه کا
دنفس په تله را تله پورې يا رېا د کړم
يوه ږدم ،سا قى ر ا بله پيما نه کا
حيله هيڅ دصحبت په کا ر کې نشته
کعبه‌ستا مينه په عشق کې بتخا نه کا
سرهندل صد يق ته هيڅ وى‌ستا په عشق کې
(۹۰) پرې مدا م جا مه د شمع پر و ا نه کا

سرو ستا قامت و باغ ته چې خرام کا

خط په غاره قمري جوړ طوق د جا کا

د لیلا محبت ډېر زیات په مجنون شو

چې وحشيي د لبر خسته مجنون ته رام کا

تل طلب د لب مې ستا ډځان غلیم دی

صبر کله زړه زما په تش سلام کا

د حرم اهو خونه یم قاضي خه له

مفتي آب د تیغ په ما حلال حرام کا

وینه تـو له ستا د مړ یو پکې وینم

چې ښکاره کاسه شفق په صبح وشام کا

د فنا مقام په کـور کې د بقا دی

دی رښتیا بدر هلال شي ځان تمام کا

ذري لوسه د دام هیڅ نه ده زرشلیږي

دغمگین زړه خدای اخر کار په نظام کا

دځوانی محنت راحت په پیری غواړي

مسافر تلملی په شپه ، سبا آرام کا

کله ستا خلاصي بې رحمه په صدیق دی

(۹۱) په خښتن د بندگی دعوا غلام کا

* * *

بې آرامه زړه طلب د ډیر هوس کا

غونچه ګل وی هغه ځای پرې خار وخس کا

بې وسواسه زړه زاهد په خلوت نه دی

مرغه تل زړه الوتو ته له قفس کا

بې آرامه کجاوه ناقه لیلا شوه

دا اثر آواز هر ګوره ډیر جرس کا

په ناقه له مونې وینې مشک ناب شی

بوی د سوی زړه رښتیا ښکاره نفس کا

په دیدن د هیچا سترګې مړې نه شوې

په دنیا پیدا به څوک له خوښی بس کا

پس له مرګه آرمان سود دنیکی نه کا

څه فایده شهد و ته لاس مروری مګس کا

د غفلت په قافله صدیق او ده ځی

(۹۲) د بیدارو رهبری غږ د جرس کا

* * *

تشنه لب به دلبرې لب سیراب کا

ګنج د درو دي رښتیا طلب خراب کا

د سایل طمع ترزړه نه چې چا پیر شي
تصور په زړه ترخوله د بل جواب کا (۱)

په خوښۍ دزړه هرگز غفلت ښه نه دی
ځان پخوا اما لگه جوره فرش د کباب کا

چې خبر په حقیقت شی د درست عمر
هم هغه اول دخپل دفتر حساب کا

چې له ځا یه هیڅ لیده شی هغه هیڅ دی
څه فایده ارمان پیری وخت د شباب کا

د صد یق عیب هغه کا عیبجو یه !

(۹۳) چې اول د ما غ شسته په میوناب کا

څوک چې په څه طلب له ماصبر و آرام کا
منع یاد کله ابله په فکر تا م کـا

هبنم پیا له دخم په لب هرگز یې نه پرد م
دغمزې تورهمې خوږ په وینه کام کا

له دورانه گیله تل په خا موشی کړم
گیله خا و ره او سه چاو.ته پیا م کا

---

(۱) دادوه پښتونه یوځای اوورپسی پښتونه بل ځای پیل پول لیکل شوی دی . زموږ په اټکل دا به د مستنسخ اشتباه وی .

د مجنون آزادی هیڅ بی قید ه نشته

حلقه عشق و ما ته‌ستا د زلفو دام کا

په آغاز د عشق صد یق ترسره کیرشوم

(۹۴) خبر نه یم چې قسمت مې څه انجام کا

څو په لاس پیاله ساقی وا گلرنگ نه کا

هیڅ اثر په ما آوازنی و چنگ نه کا

چې څرگند د محبت رنگین شراب شی

په نوشلی یې می‌ستان په څه درنگ نه کا

په طلب شوم د دې باغ د ښو گلو نو

باد په وره یره صرفه د گلو د رنگ نه کا

د عمل کېښتې مې سیر په دریاب کا

په بیا له گوذر هیڅرې نهنگ نه کا

قید ستا فکر صد یق ته دو صال دی

(۹۵) مسلمان دې خدای په بند د فرنگ نه کا

شیخ په ورد، په مسئلو شو، په کتاب

زه مین په چنگ و نی یم په رباب

صومعه زهد و تقوا د زاهدانو

در ندانو خو ښ ساقی، مهر و شراب

معرفت یې په ممات په حیات بیا موند

د عارف چې له مخ لرې شو حجاب

محبت د صاد قانو هسې نه د ی

چې پروا د جنایت کا ، د ثوا ب

فراغت په حیات نه سومی بې سو ته

خوارخسته عاشق په حال دی دسیماب

خپل آرام یې په وصال گوندې حاصل شی

(۹۶) دصدیق دی په هجران کې اضطراب

که یې لرې له ښه مخه شی جلباب

مخ به مهر څنې پټ کا په سحاب

ددیدن طاقت یې نشته چې یې گوری

دخفاش (۱) په سترگو مه گوره آفتاب

له او له یار سکون زما په زړه کا

هرچې پښه د دلبری یې دی په رکاب

په لحظه لحظه خونونه کا په هاره

دغمزې جلاد یې تېز دی تر قصاب

لکه تیغ یې دغمزی هومره آبدار دی

دمصری (۲) توری نشته هومره آب

---

۱- خفاش- اسمان څکالی ، شاپیرك

۲- (مصری) د (مضرب) غوندې لوستل کیږی او په اصل کې مضرب لیکل شوی دی .

دا يې بوی د تورو زلفو سبا راوور
ځکه هيڅ شو بوی د مشکو ، د ګلاب

زه يې بند په چاه کې پروت د زنخدان يم
ښور وی را ته د سيه زلفو طنـاب

په ما نې دې زمانه رګڅ دی صرفه بويه
د ځځوا کی طـاقت نه لری حباب

هسې مخ دی ستا د مخ له مينې پـ يښ شو
چې په خيال را ښکاره نه وی نه په خواب

بل غزل په انتخاب چې کړې صديقه

(۹۷) د رحمان د غزل بس دی دا جواب

د خلقو الفت څه دی ، فرزانه ته دی عذاب
تجريد څوک له ځانه ودانا ته دی صواب

هيڅ ريږوند اوروغ په يوه لار سره سم نه ځی
کله د عاشق ، د زاهد سم در ومی جواب

بې ديد نه کله د عاشق صبر سـکوت وی
کله تشنه مو ړ شی په ليد لو د سـراب

ګنج د سعادت زاهد ته خپل کونج خلوت شو
رند قلاش ته بويه چنګ و نی ساقی شراب

کله خاموشان تهی دستان په کونج کې اوسی
ور په درصدف په ته کې پروت وی د درياب

هیڅ نبی صاحب د نبوت په اول نـه شو

ځکه کار بهتر تل د پیر ی دی تر شباب

نه آسمان په رای د چا گردان یو ذره شو

نه ساقی په رای د چا باده کړه د شر ا ب

یا به مخ د شکلی خط ته ورکا ته صد یق کا

(۹۸) یابې محبت وی تل په توری دکتاب

چې خواږه دی تر شکر و د دلبر لب

څوک دی نه وایی دلبرو ته شکر لب

چې سې لب په دوا ړو لبو باندې کیږدم

وایم تر مې په او به شی د کوثر لب

ملا یک مې وارسته ری شی تسبیح ته

په دعا چې د دلبر سوړ م سحر لب

کله کله هسې راز مخفی له تا کړم

چې په گفت و گوی مې هیڅ نه وی خبر لب

گستا خی دا هو سره نه بو په صدیقه

(۹۹) چې په خوا سې تر هرځه کښل کړې اکثر لب

چې په خواب د سر گک اوده نه یم په خواب

په حساب اوده غفلت کړم بې حساب

بې خبر ، خبر د هیڅ په احوال نه یم

تابسې و رک شوور کک له تا به یم بیتاب

او ده هم په و رو، په زور په غېږ بېله ارشي

مې جواب کړم په جواب شوم لا جواب

د جرس په غږ بېدار تيار اسباب کا

فرصت نه وي داوده هيڅ تر اسباب

هيڅ عمل د صد يق پټ په ظا هر نه د ي

(۱۰۰) د حجاب اشنا يې و يني بې حجاب

چې له زړه سې ورى آرام له ستر گوخوب

ستا ښا يست دى د جها ن فتنه اشوب

که پرې د رست ذره، ذره شي په کو کل کې

له زړه نه ځى ستا د سينې تلا تو ب

چې د عوادعا شقى لرى په سر کې

ترې به نه ځى که چت پټ شي په سيخ چوب

ترهغه خندا هوس په سرى زورو ى

چې له سرد داني لا رنه شي ز هو ب

هو سره زړه ستا په صلاح د بوسې به کړم

لکه تېرى په او به کا ځان خر وب

د وصال پهرسند بياد مهجو رپه غم وى

خداى دچا شپه کا په ويښ دچا په خوب

خد اى که دا ځله صد يق سلا مت خلاص کا

(۱۰۱) يا د به نه کا په خوله نوم د عاشقتوب

د رست عمر مې تېرشو په طلب کې د مطلب
درست نه شو مطلب مې عمر تېر شو په طلب
څوک چې کا طلب د جمعيت هومره پريشان شی
هومره به غمګين وی څوک چې کا عيش وطرب
څه لره طلب څوک له حضوره د مطلب کا
شی وآ ينې ته آ ه تر خو له پاسته غضب
خوا لره و ور د ر و مې چې مقصود و ته څوک شا کا
سيوره وړا ندې تښتی شا کړه شی به عقب (۱)
سينه شو تر همت پورې رښتيا څاڅکی صد يقه
(۱۰۲) پروت دی په دریاب کې لکه کا زی تشنه لب
چې اشره دې چېر ی و و ينم په خواب
په در ګاه د رب شا کر يم په هر با ب
د نعمت شکرو اجب په ځان قبول کړم
سجده ګاه کړم ستا دوړو ځيو په محراب
يو نظر چې د ر ته وکړم د وا ړه کو نه
نه پېر يږی ( ۲ ) نن په داذ ره ثواب
د اطاعت مې د طاعت په شما ره نه دی
عنا يت دې چې په ما شی بې حسا ب

---

۱ـ همداسې ليکل شوی دی
۲ـ نه پېر يږی نه پېرو دل کېږ ی

زه ذره خبر ضعیف په ځان پوهیږم

چې مجیب کړم واړه زه په مستجاب

چې تشبیه دې څوك ومخ ته د مهتاب کا

مخ هغه له شرمه پټ کا په سحاب

په یقین د صاف تصدیق هومره پوهیږم

(۱۰۳) چې صدیق به څپله میڼه کا کامیاب

هرچند گر به حسن خوبی اند انتخاب

ما نند روی تو نبود مهر و ما هتاب (۱)

گفتی (۲) که مست باده رنگین کیستی

گفتم زچشم تو نیم وز بادهٔ شراب

پر شد ز فتنه جمله جهان یارب این سبب

وزمست چشم دوست که خورده شراب ناب

ازسا کنان میکده احوال ما بپرس

از روز گار رندی وز مستی شباب

زاهد مگر نصیحت د زدان پاکباز

پرده پدر نه پده وخود نیست باصواب

افغان چو در حقیقت خود کرده ام نظر

وز بوی زلف توست جهان جمله مشکناب

از کار بد صدیق نداست جهان کشد

(۱۰۴) هر کا واگر شود بشود نیك د رحساب

---

۱ ـ دا غزل تکرار راغلی یو اځې د ده روستی بیتونه د لته نوی دی

۲ ـ دویم ځای د (گفتی) په ځای (گفتا) دی

جهازو نه دیږ و بیړی په دریاب

چې تختې پتری یې دواړه دی نایاب

دا قلزم یې تباهی به چېر ته یوسی

چې یې نه موسې خبر څوك یا وهاب

زه په خپل جهازحیران یم گوره څه شی

معلق په سر و لاړ دی د دریاب

دژوندون احوال سې اوس را ته معلوم کړ

چې نظر سې په هستی شو د حباب

هست و نیست په حقیقت کې را ته یو دی

مرگ ژوندون شته، په پیری په شباب

عاقبت به مخ له دواړو یو څرگند کا

پس له مرگه یا ثواب شته یا عذاب

د عمل جزا رښتیا ده چې موندهٔ شی

تل په بدو شته بدی، په ښو ثواب

مرگ ته سل ځله رضایم، کشکی نه وای

په لحد کې د فرښتو سوال و جواب

هیڅ چې نه لری په هیڅ ملامت نه وی

خدای سړی مه کړه په شته باندې کریاب

خو یې پورته پورته وړې په ښکته دروسی

څه عجب خوی د پستی لری تراب

دا هزل خو انتخاب شو اوس مې ژړه دی

(۱۰۷) که صدیق تر دا بهتر کا بل جواب

چې او ده شی د سرگی په شرین خواب

له هغو سره دې څه شی سوال جواب

لکه خم په خپل مکان خاموشه پریوځی

جوش خروش لری په زړونو بېحسا ب

پـه هغه ژبه خبره در تـــه وا یی

چې له سوا له یې ته تل یې لا جواب

چـې خبر پـه معما وی د رته وایم

لـه هغه عـلـا لمه و لـو لـه کتا ب

گوندې وی لـه حقیقته خبر دار شی

دهغه کلام په توری په اعـرا ب

د دنیا له مینې سود چاوړ ی نه دی

تشنه هم کله سیراب دی په سرا ب

دژوندون حلاوت شته نه شته باور کړه

ددر یاب له پا سه وی نـو ی حبا ب

دا منت په ما د خیا ل دی زه پوهیږم

ر فا قت چې نن له ما کا دا احبا ب

معلم د عشق صدیق هسې تعلیم کـړ

(۱۰۸) چې اوس لو لی حقیقی معنی کتا ب

(ت)

چې په زړه يې خيال د ښکلي شورين ګښېيناست
زيبو رشو په چمن چې نسرين ګښېيناست

د جبين خولو ته ستا هومره حيران يم
چې له کومه په داماه داپروين ګښېيناست

د يوسف باد شاهي ګوره پس له بنده
تل خو بنی شوه دغه چې غمګين ګښېيناست

د هغو نچې ښايست اشمت د بورا ډير کا
عجب خال دی چې په مخ پازدې شين ګښېيناست

چې په عشق کې صد يقه ستا انګشت نما ی شو
ځکه غيراوس د فرهادو شيرين ګښېيناست (۱۰۹)

په جهان کې مې يو يار غوښت
سراپا مې پر يو يار غوښت

په اسوند تري دونا وم
نه جفا ته مې تيار غوښت

ما وې ښا د به په وصال شم
نه چې هجر مې د شوار غوښت

چې مې تل ورځې د زړه خوری
ځکه ما هسې خو نخوار غوښت

د خزان تمه يې نه وه
چې بلبلو لاله زار غوښت

ما وې يار په قرار غواړم

ما په ځه تل نا قرار غوښت

صد يق ځان سپا ره و ې‍ا ر ته

يا ر مې سر ته په ملک دار غوښت (۱۱۰)

چشم مخمور ترا حاجت به مې خوران کجا ست

قا تلان را سيف دادن وقت مې گو ناروا ست

پرده پوشي ميکند د يوا نه را د يوانگي

ما چو عا شق گشته ايم ازما گريز گل بلا ست

زير چرخ نيلگون ما نند طفلم د ست و پا ی

مي زنم از شوخي خود بند خند يد نو است

ا زگريبان سر برا و رد ن چو غنچه درچمن

ا شتياق روی تو دارم بخا طر مد عا ست

کس نمي بينم که آ رد از تو پيغا م مرا

بوی زلف تو اگر آرد مرا با د صبا ست

چون بود شرين ترا زشکر لبان دلبرا ن

گر کنند با شکر شرين محبت کو خطا ست

گر حکا يت ها شود ما بشنوم حال از کسی

قصه مجنو ن و ليلی ما ند حرف ما جرا ست

(۱۱۱) . . . . . (۱)

---

۱ ـ دا غزل نيمگړی د ی اونو ره برخه يې نشته .

نن سې و لیده په‌ستر ګو هغه یا ر مست

سم په لاره نه ګا ته لکه میخوار مست

بر ندې‌ستر ګې را ته پو ر ته په مستی ګا

ګا ته مست ګا ، روزګار مست درود یوار مست

په مستی زما دمینې و ا ره مست شول

کور سې مست ، مهلت سې مست ، کوځه بازار مست

شیخ زما د یار د لبو شر اب نوش کړل

د ی پرې مست شو ، خر قه مست سا قی (۲) ز نا ر مست .

زه هم مست ، د لبر هم مست سیل د ګل کړو

سا قی مست ، شر اب یې مست اوهم یې نار مست

د مستا نو مجلس هسې مکان غو اړی

چمن مست ، عمارت مست ، نقش و نګا ر مست

---

۱- دا بیت د پښتا نه شعرا لـومـړی ټـو ک سره سم و لیکل شو زمونږ په نسخه کې داسې دی :

خدای دده په مستی واړه سره مست کړل

کور یې مست ، مهلـت یې مست . . . .

۲- په پښتانه شعرا کې دا مصرع داسې ده : دی پـرې مست شو خرقه مسته هم زنار مست.

د مستانو په مستی مې زړه ښه شو

ویل مست کا، روزگار (۳) مست کاندي هر کار مست

په مستی زما فلک په رقص کړ شو

مطرب مست، چغانه مست، دف و مزمار مست

د صد یق مستی بو ازی د ځان نه ده

(۱۱۲) قلم مست، قلمدان مست، لري اشعار مست

چشم آن وحشی وشی (۴) گر دیده به تسخیر ماست

حلقه ئی زلف پریشان دو گلو زنجیر ماست

ما نمی آیم بیرون از بیم خان هرگز بروز

در ره آن کعبه رفتن ها دت عبگیر ماست

کس نمی بینم که او در کار تدبیری نکرد

کار ها سپرده دایم کار د رتقدیر ماست

کی تواند برد از بستان سلامت دامنی

هر زمان خار مغیلان دست دامنگیر ماست

گر روی در خانه لقا هی کنی بینی در او

هرچه بود آن خود مصور کرده در تصویر ماست

هیچگه از راست گفتن دل کس ازما ور نکرد

چون هدف ثابت نها ده رو براه تیر ماست

---

۳- په پښتانه شعرا کې د (نشه) په ځای (انشاط) او د (روزگار) په ځای (کتل) دی.

۴ - دښتی هم لوستل کیدی شي.

تیر از دست تو چون خیزد به جان او رسد

نیم بسمل گشته از تیغ تو آن نخچیر ماست

دیگران را بی دهی ساقی مرا جامی تهی

هر چه هست از قسمت روز اول تقصیر ماست

سر به در پای محبت زان فرو بردی صدیق

کان بریده از تنت بر قبضهٔ شمشیر ماست (۱۱۳)

چې د رکړې دی و تا ته چا ښایست

هم هغه به وری له تا نه دا ښایست

که ښایست د یوسف هم څه خو مشهور دی

د پسر ټوری کښلی ستا لقا ښایست

نمر سپوږمی دی ترښایست پورې هیڅ نه دی

چې تری زیات کا څنې ستا زیبا ښایست

نه د حور نه د پری د غه ښایست شته

لکه ستا دی په دنیا پیدا ښایست

لکه ستا ښایست ما ولیده په ستر گو

هسې نه دی نور لیدلی ما ښایست

د ښایست نهایت داچې دین و دل وری

نور به کوم کا تر د ا بلا ښایست

چې په خوی او په خصلت دواړه یو ځای شی

ور ته لا کاندې هر گور بلا ښا یست

ته دخپل ښا یست منت په آشنا با رکړه

څو لا تا ته کړي نه ده شا ښا یست

د بلبل سترګـې ختلې وی صبا ته

چې به کله دا غو نچه ګا وا ښا یست

په دا خپل ښا یست غره مه شه ای ګله !

تل به نه وی په چمن کې ستا ښا یست

چې صد یق پکې ښې ښکلې دي ستا یلې

(۳۱۱) دا غزل ګا څکه سر تر پا ښا یست

علی ا لد وام به یا د تو ا شتغا ل من ا ست

بهر ز مان که بود با تو قیل و قال من ا ست

زعشق تست جگر پاره ام که خوا هد دوخت

بیا ببین هر ذر ۀ جگـر مثا ل من ا ست

به آ ب د یدۀ ما پرور ش د هند او ر ا

خیا ل قد تـو د ر بستا ن نها ل مـن ا ست

به کوه دشت ها ا گر قیس ر فت ما کن شد

عجب مدا ر که او بسته خیا ل من ا ست

ز بیقـر اری او غم مخور که شب و ر و ز

به نازو نعمت پرو ردۀ غـزال من ا ست

ا گر بظا هر احوال د ور و ی د ا ر د

عشا ق خسته سرا فراز د ر و صال من ا ست

منم به دولت اقبال پشت داده ولې

چو سایه او همه عمرم پې د نیال من است

نظر به لوح جبینی تو من از آن دارم

که ابروی تو خم کشتن میم دال من است

بگفت رو به چمن لاله را ببین صدیق

(۱۱۵) درون سینه او داغ عکس خال من است

په دنیا کې ما ونه لیده یو یار د رست

په همت او په گفتار کې په کردار د رست

د هر چا چې دز ره روی وکرم ازاو شم

نور به نه کرم په هیچا دزره اعتبار د رست

چې خندا د چا سره به درست اخلاص کرم

هم هغه را ته هر گند گا خان اغیار د رست

ما په ملک کې د خدای وکړه اشنای

ولې نه و چیرته څوك په وی اقرار د رست

هر اشنا به په او ل د یدن کې گل و

په دویم به را څرگند هو لکه خار د رست

هر سړی به طلبګار د خپل مطلب و

خبر دار به حقیقت هوم وار ، به وار د رست

د دنیا روزگار هر څوك په خپل مطلب گا

ولې عیب د هر چا شی را اظهار د رست

زه په خود بو ، د بد و له چا زار کړم

خپل قسمت دی چې را پېښ کا نديداوار درست

يوسف زی که محمد زی که بل فريق دی

دا همه په ما سطلب کا ندي خپل کا ودرست

هزار شکر منت بار د خپل خاوند يم

چې په ما با ندي چا نه کړ منت بار درست

په همت کې لمر په لاس لکه غرکی ورم

لا په داکې هم ځان و ينم شرمسار درست

چې دا هسې بې لما زې را ته ښکاره شي

په فراق مې کړ ی او په سمه کهسار درست

په هيڅ رنګ به رای دچادزړه خپل نه کا

(۱۱۶) سرومال که ترا شنا کا صديق زاردرست

څو مې سترګو ستا له سترګو نظر واخست

هر با نه مې بار داوښو ګوهر واخست

غم زما آسما ن د اه له سوزه تل کا

د حباب له باده بحر خطر واخست

په غمګين خاطرروزګار کړم په دعا لم کې

څم له ما د غمګينی هنر واخست

هرنفس بې هو شه ځم په هوش را دروسم

چې په منډه مې له سور و ستا خبر واخست

نه مې ځان په آینه د ی نه ځان و ینم
په ادب ستا له کتومې بصر وا خیست

دمقصود پرده په مخ له میانه د ور شوه
کوم حجاب دی بل په مخ مې د لېر واخیست

ورځ وشپه د واړه په غم دصدیق د رومی
(۱۱۷) چې لوی باریې ستا کرم ته په سر وا خیست

بی نوای جان من ! ازدرد تو فریاد ماست
جان فراموشیم دردل جمله ازتو یادماست

ذکر و تسبیح و اطاعت جمله را بگذ اشتی
کی بود کارم دیگر چونام تواو را دماست

ماچو یعقو بیم زگریه دیده ها گر دد سفید
یاد یوسف در دلم اسودگی معتاد ماست

درگر یبان سر فر و بردن و دیدن مهتاب
این سبق فرموده را تعلیم ازاستاد ماست

قصه مجنون و لیلی خلق د رد فتر کشید
دیده ام دیوان خودکان قصه ازافر ادماست

کس نمیاساید چو بنشیند به پهلو ام دمی
هرسر موبرتنم چون نشتر از فولاد ماست

ما معلم و ا زتعلیمش زبان بپر ید ایم
بعد ازین گر بشنوی هرحرف ازارها دماست

برزبان خویش اگر نا زد صد یق عیبش مکن
(۱۱۸) کان برای زلف خوبان ها نه همشاد ماست

هو په ایکویه ظاهر نه هی اثبات

فرق نه شته د اصیل ود یه ذات

په او یو د آینی سیرابی نه هته

چې هو ره زمکه او به شوه په حیات

ځینې تندرد آفت ځینې گوهر شی

څه عجب او یه رادرو مې سماوات

د غفلت نفس وبتعیا ترمرگه یه تر دی

دژوند ون نا مه دچا مه هه مما ت

آینه په صیقل پټ تمام جهان کا

د لباس ځوبی جدا ، جدا د ذات

په محك د سیم و زر تجر یه کیږی

خو د یه بیل شی سیا لبح ، حسنات

په بخښنه د صدیق کریم راضی هو

تل غنی واجب په و یږ یو کا ذکات (۱۱۹)

سر فرو بردن بدریای محبت کار ماست

جان بجانان ناسپردن اوبن سعادت یار ماست

چند ترسانی مرا ازعشق جانسوزای عزیز !

ساز عشق خود خلیلم آتشې گلزار ماست

بیستون واصحیت هیچ ازتیشه فرهاد نیست

تا قیامت آن صداا زسینه افگار ماست

دولت از باد صباحب زنده داران یافتند

چشم خوابیده بینی دل درون بیدار ماست

رفته در خلوت ز لیخا را گر پیمان گیر شد

حسن یوسف خود فروشی کرده در بازار ماست

کی تواند یک سر مو پا نهد بیرون زجا

آسمان نیلگون پابستهٔ پرکار ماست

ما مسلمانیم بود ما را یقین برکفر او

تار های زلف او هم در گلون زنار ماست

احتیاج می ندارم بس بود ما را همین

دایم آن ساقی زچشم مست او خمار ماست

نغمه های بلبلان کی گوش دارم در چمن

چون درون سینه اوازه دف ومزمار ماست

گریه پابوسی برم دست نثار او کنم

ابر نیسان گشته هر دو چشم گوهر بار ماست

ابر نیسان گریبا ره در صدف هادر شود

حرف این مقطع صدیق اول دو شهوا وما ست (۱۲۰)

زړه مې نه کښا و بیل شه ته التفات

بې له یاوه وبل نه کړم کم و زیات

که شه روغ دی خو له مینی مې زړه داغ دی

نور مې څور کړه زړه له هر څه لرم مات

یو زمان دز رہ خوجی، هم یی د وست همر

تف، لعنت شه د دنیا په کل اوقات

د دنیا مینه لوی رنځ د آخرت ده

دانا یانو پرهیز له کړ ځنې مات

په طلب ور پسې ستړی مې تقصیر شو

چې سکندر او په طلب کړې په ظلمات

چې مې نه وه نصیبه، نصیبه نه شو

چې سکندر او به و نه ځښې د حیات

در دو هم په یې هرگز لیدلې نه و

(۱۲۱) که صدیق اشنایي له کړ ای د کم ذات

په پر پښنا دې سپینو غاښو کړ گو هر مات

په خوږ و دې لعلو لبو کړ شکر مات

د صبا نسیم دې بوی د زلفو راوړی

په ختا کا بوی د مشکو، د عنبر مات

دا به حال د پرېشانی زما وا وې

چې صبا کا ستا د زلفو خوږ ته سرمات

زه لښکر و رته د صبر مهیا کړم

په کا ته مې کړی د دو سترگو لښکر مات

چې پرې گرد ستا د تلی د خاورونه وی

د هغو په سر دوران کا ندې افسر مات

خو امید ستا د وصال وکړم هجران دی

دوست په زړه کالدې زما د یاس خنجر مات

واړه کار د محبت دی دروغ نه دی

که فرهاد په عاشقۍ کې کړ هر مات

مصور د خط چې نه شي ګڼې، حیران شي

واړه سینه کاتری خپل عقل هنر مات

خو دې هشی د همزې شته هغه واړه

(۱۲۲) وار په وار کړه د صدیق د زړه په سر مات

* * *

(خ)

د دنیا په کار ښاد من خاطر غمګین هیڅ

لاس په ویدوه مرداړ کښلی رنګین هیڅ

چې وفا نه کا تر عمره آخر هیڅ وی

مصا فر منزل په مخ، په لار تسکین هیڅ

تعلق په زړه ذره په آزاد غـر شی

مخ د صافي آینې ګښلې رنګین هیڅ

د هوا وری، هوا په هوا ورکه کا

د حباب په عمارت د زړه تمکین هیڅ

لب په غاچو د همت چیچه صد یته!

(۱۲۳) چپ په لبو د دلیا د سره او سپین هیڅ

لکه زه یم په هغه تیغ هر یا ن غوخ

خدای پرې مه کړه یل هندو یا مسلمان غوخ

د غمو نـوسر له ځـا په آشنا یـې وه

دا یونوم دی چې سړی کاندی هجران غوخ

ای ارمان ارمان دریغ دریغ هجرا نه!

دجهان زړونه هم ته کړې په پنها ن غوخ

چې مې د که پیا له پر یباسی له لاسه

د ازل قسمت هر گوره کا مستا ن غوخ

له اوله په هادی ، بیایې په غم کړم

کرم قسم چې لرې زړو نه عاشقا ن غوخ

ذن فلک پرې خو شحالی کړه سبا غم وی

په خزان کې په ر ښتیا شی بلبلان غوخ

د مزری نامه پرې کیږ ده زمری څه وی

ځوان چې ځان کاندې د توروپه میدان غوخ

پـه خند ا خنـدا وا څـه ځـا ره ځـړی

چې په توره د حسد شی حا سد ان غوخ

که مې ته د آه په تیغ و هې صد بقه

په رښتیا به شی ان دا زمکه آسما ن غوخ (۱۲۳)

مخ وته دې گورم پورته امر شي را ته هيڅ
زلفو ته دې گورم تور عنبر شي را ته هيڅ

لعل دې د لبو لعل هيڅ د بدخشان کا
ځانبو ته دې گورم سپين گوهر شي را ته هيڅ

سرو په بوستان کې خجالت وري ستا تر قده
قد و ته دې گورم نور هر شي را ته هيڅ

شته دی په جهان کې ښې دلبرې مو کمرې
ملا ته چې دې گورم مو کمر شي را ته هيڅ

. . . . . . . .(۱)

(۱۲۵)

* * *

(خ)

په خندا چې راښکاره کا هغه جان مخ
ځکه هيڅ شي د آفتاب پاس په اسمان مخ

چې پورته د يوسف پر يوته له سره
د آفتاب پنجه ښکاره کا تر گريوان مخ

په جهان ځکه تيا ره شي چې سپا شي
کله پټ کا د گيسو په سا يبان مخ

ترهغه به يې په ښوندو با ندې نه پړه ی
په معنا چې ستاونه وښی رندان مخ

---

۱- د دغه شعر نوره برخه نه لوستله کيږي

زه به ستر ګې چېرې نه کړم ور ته پور ته

که يې تا کار اشکاره ګل په بوستان مخ

د جهان ستم په ستر ګو د ليلا کـا

چې مجنون کړ اوس په پټې بيابان مخ

هغه مخ صديق په پټو ستر ګو ګوري

(۱۲۶) چې هيڅا ته ښکاره نه دی هغه شان مخ

لکه نن را ته څرګند هو ښکلی ستا مخ

هسې نـه دی چا ليدلی په دنيا مخ

بې حجابه را ښکاره خو په حجاب دی

ځکه پټ دی ستا له هر مه د حيا مخ

چې را ته له د ګل خوبي حاصل زما وي

شګفته شي ګل چې ور ته کا صبا مخ

که وفا د نـورو ښکلو هر ګز نشته

خدای دې ستا کا تل وما ته په وفا مخ

په ماني دی په ريښتيا تر مرګه تير شم

خدای دې وچار باسه ما ته په دعا مخ

د نظر په دود يې پاس پـه ليمو ځای شو

(۱۲۷) صديق ځکه هر ګز نه وينې يې تا مخ

که څر ګند ګا ښا یسته لن تر جلباب مخ

نور به پټ ګا په سحاب کې د آفتاب مخ

که جهان ته ښکاره نه دی زه بې وینم

چې د لېر سا تی له نورو په حجاب مخ

دښا یست به بې په کوم ژ بان تقر یر کړم

چې پسو یې ښا یسته دې بې حساب مخ

که زه خط په مخ دیار ګورم ثواب دی

لکه ګوری څو کله پـه مینه د کتا ب مخ

هسې مخ به نن هیڅا نه وی لید لـی

لکه ستا دی په جهان کې ا نتخاب مخ

و بقا و ته یې هیڅ امید و مه کـړ ه

چې څر ګند کا په درياب چېر ته حبا ب مخ

که په ستر ګو لیده شی مو ند ل یې نه شته

تشنه خلق دیهو د ه کا په سراب مخ

ماوې زه به بې لاخال و ته سجو د کړم

لا تر ما امام په خوا کړ په محراب مخ

دامې د پر منت احسا ن ګڼه صد یقه !

(۱۲۸) چې و تا و ته چار باسم په جواب مخ

(ڈ)

ولې له بې را ضيمن په هغه سود

هغه سود چې هميشه لرى اثبود

دهغه له ياد و خله فراغت شوې

چې ترتاله تل وتاله دى موجود

تمامى قباحت دادى که باور کړې

چې مريد له خوله پيره شى مردود

چې دې بو زمان جدا نه وى له دله

په معنى کې هم د غه شوستا معبود

جدا يې ځنې ذوه د ياد و مه کړه

که هرخودې شى اندوه په زړه افزود

په هر ځه کې چې ځه واچوى که وا يې (۱)

ها قبت شى بيا هغه ځنې امود

دمسلم ابها له ځه ده بند کې ده

داخلاص طاعت به کله کا جهود

---

۱ـ دا مصرع په پښتانه شعرا کې داسې ده : په هر لو ښى کې چې څه شى اچو لى .

سلامت تەسلامت بخښلی خد ای دی

څه شی او وته خلیل واچا وه نمر و د

ته تل سی د محبت لو شه صد وله !

(۱۲۹) پەداڅه شی محتسب کهشی (۱) حسود

گر وبان چاك گل داوم از با د صبا باشد

به بی‌وقتی تبسم هو لچه ر ااقص نما با شد

منم عاشق به‌رسوای‌چومجنون گشته درعا لم

به هرجا ی که باشم شورطفلان د و اشا با شد

ز بید اد اسیم پرهن گل چاك‌سید ا رد

چویوسف بود سبب‌دست‌ز لیخا با قفا باشد

اگرعزم سفرداوی‌زدرپای چو اسکندو

لادم برکشتی‌خودله‌ تر اصورروا باشد

(۱۳۰) . . . . . .(۲)

عمر څه دی لکه باد (۳)

داچې نه لری استاد

هرچې و کا ند ې طلب کا

څه ابلك څه وېاسد اد

---

۱ـ په پښتانه‌شعراکې د (شی) په ځای (وی) دی.

۲ـ داشعر لومگړی دی .

۳ـ په اصل کی (عمردی که باد) لوستل کیدای‌شی.

چې سلیمان پرېوت له تخته
جریان حکم له وړی باد

په دنیا یې روغ جنت کړ
په ارمان لاړ شو شداد

مرگی لاندې کړ اژدها ورو
که کاوس و که قباد

هغه هم دی تورې خاورې
چې یې ډېر کاوه ذهاد

هر چې نه کا هغه ښه وړی
هر چې بد کا وړی اماد

جهان واړه ځای د غم دی
څوک به څه کا الدی زړه ښاد

زړه هم هغه دی صد پاله !
چې مشغول وی په ښه یاد (۱۳۱)

* * *

(ر)

که خانان میران نظر لري په زر د پر
ما پښتنه لری تر دوی والا نظر د پر

د تمام جهان لښکر داهو مره له وی
لکه ستا مقر کې، با نه لری نظر د پر

د جنت خوښی مې واړه ګړه پرې هېره

چې مدام دې په کوڅه کې ګرم ګذر دې

درست جهان به دې ارزو له ګړه د بدن ته

که دې ښکلی تر یوسف له وای بشر دې

دا عالم واړه دروغ کا چې یې وایی

چې تر زلفو یې دماغ لري عنبر دې

ستا د شونډو په دوران به یې ونه ښنم

که اوبه لري خواږه د لوشکر دې

د لوښنیو په اوبه به یې ستا نه اخلم

که اوبه چا ته قیمت کا د کوثر دې

واړه ویره مې بېرون شوه له خاطره

ستا په عشق کې دارمی نه کیږي د سر دې

تر مطلو به پورې تله بو یه صد یقه

(۱۳۲) که د عشق په ګرانه لار کې وی خطر دې

دېر د خیال سواره چې لاړ دی په دا لار

بیا یې نه شته هیڅ خبر بیار ته دو با ر

دا د لی یاران خوشته هورته یې بولی

تل ناره په پته خو له کا په تلوار

ودا لی ربښتیا ترد انه هورته ښه ده

څکه خوښ وی دېر ترد ا هورته هوښیار

لکه راغله هسې لاړل ځي را دروسی

عقل هیڅ ورته رسد نه کا د شمار

که باورګړي اوس په هسې بهیر پیښ شوم

سر سا ما ن یې لیده نه شي د قطـار

یووورځ به داخوښي دربانه ي غمشي

دا ګر دون په هیچا نه ګرځي قرار

د برشاهان میران یې پر یېا ستله له تخته

لا پسې ځي چې پریبا سي وار په وار

ته به خو بي غمه خوښ په خندا ګرځې

مګر نه وینې هر ګز دسرګک نا تار

دا نا تار به عاقبت پیښ شي صدیقه !

(۱۳۳) بو یه فکر کړه دسرګک په خواتر دار

خوبل ژوندون بیا یې وګور ته یاران زر زر

ګړندی تیره تر برق د آسمان زر زر

مسا فر قرار وځه په پردی ملک کا

همیشه ځی په تلوار رهروان زر زر

په دنیا راغلي ځي په دنیا دو د دی

لکه ګرځي د چمن په خزان زر زر

کله لار په چا د عمر د تلو بند شوه

تله د یا د شي همیشه یکاسا ن زر زر

هو په ویښه ډېر دعمر دتلو غم کړی

هوسره لاځی ډېر په خواب گران زر زر

لرې ملک ته په ورو تله کله په کار دی

له هیوادهٔ دروسی کوتهٔ کاروانږ زر

ډېر شهره تله که هر څو دلظر ډیر دی

(۱۳۴) هم لاځی د صد یق پرې خندا زر زر

هسې یاردی چې جلوه کا په هر لورلور

لکه نمر هسې تا بان دی په هر کور کور

په تمام جهان یې شور د حسن گډ شو

کم لا نه دی دهغه نمکدان شور شور

په دنیا په په هیچا نه وی داهوسره

لکه زن یې دی په ما محبت زور زور

بس کړه یو په محبت د لیلی لیر شو

قیس نه شته که را د روسی خلک نورلور

هور د مینې په هیچا کې لیده نه شی

بیهوده کا ندی وگړی ویل سور سور

زاردې څه له جدا یې کاچې خپر شو

(۱۳۵) اشنا یی دې په صد یق لگوی اور اور

توره شري ښه ده نيمه لنګه نيمه په سر

ورکه ده د مغلو د بخشش سند يې په سر (۱)

پرې ترسلا شه دې چې دې لوړ په دوړې لکه وي

نه زري قصب چې ته پرې لک اړې خنجر

مه خوره زېړ بريان متنجنه (۲) په منتوکې

ځار تر اور ښيښې چې پرې ښيوي تبر

وا ره ليونۍ شول پښتانه چې پسې ځغلي

ننګ وته يې شا کړه له مغولو غواړي زر

بل که ستا منت کا عيب يې نه شته خو ته مه کړه

يو ها له بيا له شي چې د بل شي منت وړ

غوښه د ځان خوسا شي چې پرې نه کړې زحمت وي

غوښه د ځان ښه ده چې په خوی دې شي بسر

حق د پښتنو دی که اوس بيا د ننګ د پاره

سور په شهزاده کا ده ته تور خوني ځنبر

ورا ندې زه هلک وم چې پرې ډوب محمد امين شو

ښه ښه شهيدان وو پر مغول شول پرې ته بر

---

۱ - په کابل مجله کې (... د بخشش د سند يې سر) ليکل شوی او ده ده نظم دريم ، پنځم ، شپږم ، لسم ، يولسم بيتونه نه دي اخيستل شوي .

۲ - همداسې ليکل شوی .

نه مومند ايمل شته ، نه خوشحال ختك دريا شته

نه لښكر غلجي ، له پښتنو خالي شو ښـر

هيڅ نه دی نا بوده يوسفزي د ننګك په كاركې

لوم يې د ز مري دی تر ښغال دی لا بتر

څوني كه منصب خوري خولاګور په خپل وطن دی

سړی شو د مغو لو حمزه ګوره ګيدی خر

حال د پښتنو د ننګك په كاركې را ښكاره شو

واړه هيچ كاره دې بې حيا نامرد بتر

دريغه كه وطن په تور وهر ونو د صديق واي

(١٣٦)مهواى په نو ښهر ملك يې مه واى اشغر

ته په حسن كه شرين يې ددې د هر

زه خسرو د زماني يم په خپل ښهـر

ورځ وشپه دې له فراقه خالي نه يم

هم مخفي در پسې ژارم ، هم په جهر

د جهان خواږه كه زه خورم چې بې تاوی

دا همه را ته تر خه شي لكه زهـر

ستا په ټلهچې له سا د رومي را ته شا كړی

د فراق اوښكې مې جوړ كا په مخ نهر

خوشحالي به نور ونه وينم د وست همر

ماهم خم په ناوي و تاره اوس مهر

که په خلکو ودانی وی چې ته نه یې
ویرانه راته ښر ګنډ هی تمام ښهر

که دریاب په مخه ته له ورځ ځلله
بیا یې ټار په ټار جدا کاندې په لهر (۱)

بیا په ما له خوله یاره خوا په خوا کا
که په ما مهر کرم کاندی داد هر

که دزړه رضا دی ده چې مجنون ګورم
(۱۳۷) زه مجنون صدیق بتر شته په نوښهر

بې قرار د عشق په یوه ځای نه کا قرار
څه وله بې لښکر کړه سیند به لاځی په تلوار

خوښی زاهد په زهد په تقوی زه می طلب یم
روغ لیونی د واړه سره سم درومی په لار

حق د هر یعت و عا لما او چې په ځای کړ
بل چا کړی نه و منصور مه چې کړ په دار

داغ په داغ رښتیا د خوار بلبل په خاطر کېږدی
څو چې د ګردون په او به لوی شی لاله زار

هیڅ کاته را لده کا چې هیڅ له وینې زروخه هی
(۱۳۸) روغ په پتوسته ګوصد یق نه ګوری دیدار

---

۱- لهر د (بحر) غوندې هم لوستل کیږی

مینه وري زړه د پرد سفر کو تر ځنبل زور

رونده هلا رې رسم په منزل زور

یو قاصد کړندی هوسره نه دی تللی

لکه یاره! زما ستا په لورې تلل زور

د تلو تلو په کار په تلو هیڅ نه پوهیږم

د ډېر تر عمره ښکاره نه شو په تله یل زور

په جهان سواندې نامې واړه په سول شوې

د ودا لود آه سې عمر کند کا هر محفل زور

مینه ستا صدیق پناه ساقي له د له

(۱۳۹) څوک خبر موسی یې تا په دا مشکل زور (۵)

ستا په عشق کې ترما خوار

څه چې نه دی وصل او څار

فراغت یم په صفت کې

که راضي وی په دا یار

زړه د یار څه کړی بویه

مه وه خپل که شي ازار

په بلبلو باندې تل وی

هم غم خزان، بهار

څو ژوندی یم څو به وینم

غم، ښادی دواړه په وار

کمینی لوبې صدیق کړم

(۱۴۰) سر په پورته وری خاکسار (۶)

لکه ستا دی ښایسته دواړه چشمان تور

هسې نه شته ښکلی نور په دست جهان تور

زړه قیمه لرم تیاره و کباب ته

د سیځو په ځای لري او با سه مژګان تور

څه داغ و نه پټ په زړه لرم د ننه

لاله یو د ر ښکار ه نه شو په بوستان تور

هومره تا ولرم په زړه کې ستا د مینې

چې د آه په تاویې د رست پر آسمان تور

عاشقان واړه رښتیا کا ندی په عشق کې

دروغژن لری ورق په د وست دیوان تور

ننداروته یې جهان ټول هو صد یقه !

(۱۳۱) یار دې خال کښېود د وروځو په میدان تور

خدایه راکړه په دنیا کې ته همت د پیر

چې بخښنه په همت کرم د دولت د پیر

په دنیا کې سخاوت شجاعت ښه دی

رب دې راکاندی په دواړو کې غیرت د پیر

قناعت تر دغه دواړو لا توری کا

چې نظر یې تر هر څه کا برکت د پیر

دین دنیا لره دواړه چارې په کار دی

چې هر څوک د دغو دواړو کاملیت د پیر

خدای پناه له هغې ژبې له خولې را کړه

هر چې ور کاندی دی اوړې که منت ډېر

که په هر هدې سخت زحمت مرهم یې مه خوره

د منت دارو په څه هرګور زحمت ډېر

په هر پسه ورځ قاروون په ښکته دروسی

په صبوره ورځ عیسی اسمانو ته نعمت ډېر

کـه د صـبر پیالـه زهر ده څښه یې

تر هر څه به وتا در کاندی لذت ډېر

چې بیاض سپی خوګ دزره په سینه ګوری

هم هغو ته به یې رسي منفعت ډېر

هر سړی په ښه یا بد یاندې پوهېږي

اوس به څه کړم زه وچا ته نصیحت ډېر

هیڅ فایده به تري بیا نه مومې صدیقه

(۱۳۲)که نا اهل په محنت کړې تربیت ډېر

سخ هغو سترګو چې مخ وړي د یار

بـیند عاشق همیشه لـیل و نـهار

هر څه چې شته واړه په عشق کې دروسی

من کـجا و کـجاست صبر و قـرار

ئت چې دې ورکړو بیار ته له کا هرګز

دل چو از من بـه غمزه برد نـګار

مینه به پته په زړه نه شي د چا
سا قبت وازه ل شو د اشکار

مخ دخپل یار په منصور ښکاره وی
خواه د ر ا ر خواه بر سر دار

مست صدیق عشق ستا کار ښتیا
(۱۳۳) بېخبر شه بخانه و بازار

خدای دی نه کا له غمجنو غم زمان دور
بلکې لاشه په دردمنو د رست جهان پور

د ښو ناوکه بې ښوی د رومی له زړو نو
لا بې نه دی لیر په وینو یو پیکان سور

که آفتاب مهتاب دنور یوه قطره ده
خدای یونه دی لکه ته په مخ تابان نور

(۱۳۴) ............................ (۱)

***

(ړ)

ماچې ستا بشر د زړه په ستر کو څور کړ
په حساب مې بې ماننده بې لظور کړ

چې نامه مې ستا وړې و اخیستنه خوږه شوه
دخولې خوند مې څو ړ په شهدو که په شور کړ

د هغه منت لرم که یې په ما یړ دی
چې یې ښکلی تر یوسف دیار بشور کړ

---

۱ - دا شعر نیمگړی او پاتې له لری

داندوه‌کان مې ونغښت پرې خوشحال شوم
مغني چې تا سرود په بم په زېر کړ
وايې داغ دی د بلبل په خاطر ايښی
چې خزان د ښکلي گل حسن تغيير کړ
وايې معاشت لېده په خوب ليده د يار دی
معبر زما د خوب عجب تعبير کړ
خدايه ستا دادونه ډېر دي که داوا کړي
تا په څه . ما د يار عمر صغير کړ
په ما نې چې ته شاوا تسه کړي روان شي
د فراق او ښکيو سې جو ر په مخ بهير کړ
ساقي اوس دخوشحالی پياله را کړه
زړه مې ډېر دهر ناکس جفا زهير کړ
په خندا په هوس خه سوبه دي وشوه
(۱۳۰)چې صديق دې ئن دزلفو په زنځير کړ
گلي غم چې مې هښکليو په ديدار لار
پياله ما څه د زړه صبر د قرار لار
په را تله يې خوښي و بخښله ما تــه
پيا په تله مې ترده صبر په تلوار لار
د جهان غمونه وا ړه را ته پېښ شول
چې له ما له هغه ښکلي غمگسار لار
که مې روح در پسې خوځي عيب نه شته
چې دلبر مې وهميش بوسه کنار لار

که بلبل په ارمان ژاړی نو ږي ځايی
چې خزان راځی په مخه نو بها ر لار

له ارمانه به يې شور کړه په درست جهان شو
په فراق بې ترخولې ځو په زوروچغار لار

ستا دغم لښکر ومخ را ته څر ګند کړ
دبنا دی لښکر سی وار تار و په تار لار

په اميد بې دوصال دزړه خوبي کړم
او که نه بې ياره عمر واره خوار لار

ددوزخ داو ر لمبې به تريحذر کا
(۳۹) چې صديق سوی سوخته د عشق په نار لار

چې په سينه پوري بندزره دجهان لار
دهغو په بخت دبدو څرخ اسمان لار

رسيده تر نمر پيغمه وی خوبي کا
خوار په سوره هميشه داين وآن لار

خس په سرد دریاب ګرځی سبکبار شو
ګران باره دد ريابه (۱) بيکران لار

ددريا به موج په لاس دارادت وی
ازلی بدخوی اوس په ځان حيران لار

---

۱- په اصل کې (... ددريا په بحر بيکران لار دی څو (بحر) زيات ښکاری.

سپکروګړ برق په د امېدان تېر بېږی

په دنبال دقا فلې سر د کاروان لاړ

په سختۍ کې مې روزګار شو پکې خوښ یم

له همایه قسمت کوم د استخوان لاړ

استانه مې ستادعشق باب د امېدشو

په بې فکره مې دل فکر د آستان لاړ

دصدیق په خاکساری با ندې نظر کړه

(۱۳۷) چې تمام جهان په دا تېره خاکدان لاړ

چې بې امره داستاد یاد سورو پلار لاړ

هغه زوی خوار عاصی شو ګور ته خوار لاړ

په دنیا یې ګردن خلاص نه شو له باره

تر قیامت لېښلی درست په درانه بار لاړ

د راحت ساعت یې بیا نه سو ند هیڅ ور ځ

دخپل ځان په ازاری راضی آزار لاړ

د لعنت طوق یې په غاړه جاود ان شو

دیقا و دار ته هسې لکو نسا ر لاړ

جمعیت یې حاصل نه شه په دنیا کې

پریشانی یې شوه په برخه دل افګار لاړ

ازلی بد بخت په خوك بختور نه کا

نا بکار په دنیاراغی نا بکار لاړ

دا زل چه شوی بد هیچری نه وی

چې له ځایه برخوردارهو برخوردارلار

په صدیق باندې یې نوم د صدیق کښېښود

(۱۳۸) لکه ګل په شګفته اطوار اطوار لار

هر عاشق چې په طلب د جانانه لار

په خپل عشق کې سوخته دل تر پروانه لار

که د عشق په کرانه لار کې د برخطر دی

چې یې خیال د یار په زړه د سر دانه لار

که ابراهیم ادهم تېر تر مال و ملک شو

مستغني د قناعت په خزانه لار

خیال یې ځای د لیلا خال نیوه په زړه کې

څوار مجنون څکه له خانه بېګانه لار

چې له یادو یې یو دم فراغت تېر کړم

وایم د ریغه څه عنقا له آشیانه لار

ستا د خال صفت په تول فکر تم نه شو

څکه تول فکرمې خور لکه دانه لار

بېلتانه وزلی څه غواړی صدیقه

(۱۳۹) زړه له سترګو دې د او ښکو په بانه لار

توبه له ما نه څه عزیز دولت لار

چې داهسې ضرین عمرپه غفلت لار

ډېر گران لکه یوسف وخبر نه شوم

چې په څه د لیو نمنـو په قیمـت لار

دازل قلم په دا زما جریـان شو

چې له زړه مې دغه د ین اندوه فکرت لار

په خوښ ځان باندې دیده دانسته پوه شوم

چې له زړه مې درست د دین زور و همت لار

قباحت په نورتر دا پهورته څه وی

له خاطره چې درست فکر دوصلت لار

خدای دې بده نصیبه راپېښه نه کا

عمر بد زما د نفس په بد شومت لار

په یقین زما ربنتیا هغه استاد شو

هر شاگرد چې د استاد په تربیت لار

هی ء توبه څه بې حاصله عمر تېر شو

لیو ډیر چې دفرقان په تلاوت لار

هم هغه ته په شماره دژوندانه کړه

(۱۵۰) دصدیق نفس چې ستا په محبت لار

(س)

عاشقان به په عاشق پوهیږی بس

لایقان به په لایق پوهیږی بس

زاهدان په زاهدانو قیمتی وی

فاسقان به په فاسق پو هیږی بس

په دروغ ویل کوتاه میدان لویږی

صادقان به په صادق پو هیږی بس

در نځو رمطلب صحت دطبیب غواړی

حاذقان به په حاذق پوهیږی بس

هوښیارانو څخه قدر د صدیق شته

(۱۵۱) احمقان به په احمق پوهیږی بس

که هزار ځله له خلقه یم جدا اوس

شکر شکر ستا له درده یم آشنا اوس

هیڅ منت د بل طبیب را باندې له شته

هغه درد مې ستاد سینې کا دوا اوس

اول زړه ستر ګی په مینه کې ستا بند وو

بس کړه تنګ شوم ستا په عشق کې سراپا اوس

په چمن په لاله زار راځي بلبلې !

لور په لور کړه دښو ګلو تماشا اوس

عاشقان وار ه په عشق کې په تجرید دی

ځکه خو بن کړم خلکې مینې په تنها اوس

د د نیا له اند یښنو صدیق فارغ شو

(۱۵۲) چې یې زړه په اند یښنه شو دعقبی اوس

ماچې ستا ښکلی دیدار ولیده اوس

هور یده زړه مې قرار و لید ه اوس

په هغو ستر گو رښتیا مهر دخدای دی

چې یې ښکلی مخ د یار ولیده اوس

د اندوه ساعت بدل شو پرې خوښی شو ه

چې بلبلو یې چغار و لید ه اوس

په دیدن مې ستا غمونه له زړه لاړل

زړه مې درست تا ته وزګار و لیده اوس

که قرسا را ته خوك وایی عیب څه دی

چې مې ستا ز لفې زنار رواېده اوس

دصدیق امید رښتیا شو ستا یاری ته

(۱۵۳) چې لیکخواه یې خپل روبار و لیده اوس

ساقی هسې پیا له وار ندانه بیا اوس

چې په څنبل یې شم مجذوب د یوانه بیا اوس

ود انی وروغ عالم و ته بخشش کړم

خپل وطن کړم په صحراو یرانه بیا اوس

غنیمت گڼم دا عمر که باور کړې
چې دیا ولهٔ غمه شوم همخانه بیا اوس

په ما نې بیل شوی یار که چیرته موسم
لټوم په هغه سترې سټا نه بیا اوس

سرور یار که پخلا شې هزار شکر
باري ما زرا سره کا زما نه بیا اوس

مغني! ته خپل سرود له لاسه کښیږده
واته خیال کا ددلبر ترانه بیا اوس

هغه چمن چې په خـزان کې تري خالي و
په هر گل شي د بورا چغا نه بیا اوس

په خلوت کې مې زړه تنگ شو آرام نه کا
له ما غواړي اوت ملک میخانه بیا اوس

د مجنون قصه ماضی زما په حال شوه
لېر ترما پورې په شي افسانه بیا اوس

د تهمت له غشیو خلاص وم یوځو ورځې
عاقبت شوم د هر تیر نښانه بیا اوس

یوځو ورځې صدیق څشکله خاموش و
(۱۰۴) ستاد رازخپرې کا رندانه بیا اوس

* * *

(ش)

تر او بو صافه سینه لري درویش
زړه هر گوره بې کینه اري د رویش

په دیدن دخپل مطلب مرادحاصل کا

په صیقل مخ آ ینه لري د ر و یش

و مدام د اطلس پو ښو مخی نه دی

خرقه هسې پشمینه لري د ر و یش

صبر هیڅ دهیڅ حریص په خاطر نه شته

شپه شبنه ورځ آد ینه لري درویش

قصر هیڅ چې دصد یق په خدمت نه شته

(۱۵۵) محبت پرې د یر ینه لري درویش

نه به دا حسن ستا قرار وي همیش

نه به خاطر زما ګار وي همیش

خود به داحسن خوبی وړی تر خزان

ګل به تر کوسه پایدار وي همیش

اوده که ویش یم تل ولاړیم که ناست

خیال دې زما بو سه کنار وي همیش

جدادې زلفې خدای له مخه مه کړه

وصل چند سره شهوار وی همیش

مرم چې رقیب دیار په کوی کې ګرځی

ژوندون سې ځی ترې په فرار وي همیش

خم په خندا په هوس وصل غوا رم

بو رجل که سررا ته دداروي همیش

مهر هر گز طلب صد یق تري نه کا

(۱٥٦) یار خو بد خو یه جفا کا روي همیش

* * *

(بش)

لکه زړه و ینم صنم ستا په دیدار خو بش

هو مره نه دی ښ د نور خه په روزگار خوبش

خودي مخ ته په خپر خپر گو رم خوښیږم

بلبلان به همیشه وی په گلزار خو بش

تر یوسفه ښا یسته را ته ښکاره شوې

ځکه زړه مې صنم ستادی په داوارخو بش

ستاد راز خبرې دیرې شی وما تـه

طالب لاشي دسبق په دې بو تکرار خوبش

که دلخت د پا سه کښینم ښاد به نه شم

لکه ځان په کوی کې ستا و ینم خاکسار خو بش

تر جمله بد یو بد آزار د زړه و ي

خدای دې نه کا تاد زړونو په آزار خو بش

بلورې پس له دې به مینه په شراب کړم

(۱٥۷) چې صدیق مې دی دستر گو په خمار خوبش

(ص)

تل په سرز ما د آه کا اسمان رقص

تل په سرد سرو لمبو کاد خان رقص

دست افشان صوفي له ځانه دعشق زور کا

په خاته له ژی کا تهرو پوکان رقص

په لو ښنبل دمېوو د ورعقل ترشا کړم

په قرسکڅ تر سرود لاکا مستان رقص

تېر په دل تر ځانه زر وسد کا جان ته

ځکه سر کا د منصور په سنان رقص

دصديق پرې کړی سر دیار په کوی کې

همېشه کا لکه گوی په چوگان رقص (۱۰۸)

* * *

(ض)

چې دهکلېو په رخسار لري غرض

هم هغه به په پل لار لري غرض

څوړې نه گوتې مې زلفو ته نژدې کړې

هوښيار کله په ښا مار لري غرض

دلور چا هرض پرې لشته دايم وايم

يو طبيب دی پرې بيمار لري غرض

نه چې زره مې دښه مخ په طلب لا ړ شو

تل بلبله په گلـزار لـري غـرض

چې خوږه خبره شه و رته د یار کـا
عاشق ځکه په ربار لري غـرض

بې مطلبه اشنا بې سره خوګ نه کا
هر سړی په په خپل کار لري غرض

هر ناد ان له تحمله بې غرض دی
دانا کله په تلو ار لري غرض

ته دحسن ګنج لرې له ما کنار شوې
توانګر کله په نیست ګار لري غرض

(۱۰۹) دخاطر وینې به خود صد یق پرې وڅښې
چې په شونډو دخو نخوار لري غرض

* * *

(ط)

چې قاصد راوړیه مخه د دلدار خط
حقیقت راته ښکاره کړیه تکرار خط

دا بې حسن دهه مخ له مخه دروسي
چې ګرد ګند شواوس په مخ با ندې د یار خط

له اندوهه یې هرګوره زړه ز هیر شوم
چې سې واوست په ارمان او په چغار خط

په فراق سې نن تمام جهان پرشور شو
چې ښکاره سې کړ په کلي په بازار خط

دا یو زېری د بهار دی چې پرې وشو
که سبا ورګړ بلبل ته په تلوار خط

د وصال قاصد چې خط د دلبر راوړي
په امید دم په تندي ږدم په دستار خط

هسې رنګ خوشحالي ستا د خطه مومم
لکه راشي د روزګار په بې روزګار خط

که په سخت زحمت کې پروت وي پرې آسان شي
د طبیب چې چېرې ورشي به بیمار خط

صدقه د صدیق سرتر هسې یاره
(۱٦۰) چې بې د ېر شی د بلبل ته په تلوار خط

* * *

(غ)

څو چې څه بهار وي یا خزان شي په دا باغ
ګل وي چې شبنم ته نګران شي په دا باغ

یا نه، ګل که وایې کل حیات په اوبو مومي
صاف، زلال چې راشي جوی روان شي په دا باغ

هیڅ غونچه به نه شي د دې باغ په کتو کمه
سترې په دیدن که درست جهان شي په دا باغ

نه دی چې بې ناورې شګفته غونچه ګلونه
څو چې د بلبل توتي فغان شي په دا باغ

وژاړي پـه خوله خندِ ه روی د جها ن واړه

تل لکه غوټچه چې په خندان شي په دا باغ

دردې د خمار تمام صورت په ګران بار کا

ګلې په لا له زا وکې چې مستان شي په دا باغ

وړی یې له مادی په جهان کې زړه که وایي

دروغه که هغه سرو روان شي په دا باغ

راشه یو قدم د خدای د پاره هور ته کیږده

ګل به شګفته عجب خندان شي په دا باغ

ډېر په خجالت یې د صدیق و یل خاموش کا

(۱۶۱) څه شي که سوسن هزار زبان شي په دا باغ

* * *

(ف)

که هرڅو دی ښایسته تر ماه یوسف

نـه مخی کړ یـاره ستا الله یوسف

ستا د مینې لاف که کړمه درو غجن یم

راسره دی ستا د مینې ګواه یوسف

د ها یست په هر ورځه ډېر ارزان شو

ګنه نـه وه کـړ ی بل ګناه یوسف

چې یې ډېر محنت لید لی د فلک و

بیا آخـر د مصر شو پا دشاه یوسف

د ښادی امید لري صدیق په غم کې

(۱۶۲) اند به نه وی د کنعان په چاه یوسف

ته چې دېر وما ته کړې د زهد لاف

چې دېدن دښکـلېو کړې لاف دې خلاف

یا دېدن دښکلېو کړه یا پرهېزګار شه

کومه ښه ده ته پخپله کړه انصاف

چې ته داګړې ته هغه نور څه پوهېږې

هغه واړه کـړه و تا ته دي معاف

چې دې زړه وي هغه کړه دړ ته پخپلي

منع یـو د زړه آزار دویـم خـلا ف

ګفتګوی د محبت پر هـر مکا ن شي

تر ثرا تر ثر ا یا په نون و کا ف (۱)

څوك دزهد دتقو ی څوك مي پر ست دی

څوك ښږی اودي څوك هال څښي زر یا ف

څو ك د علم د مکتب د خـا نـقـاه د ی

څو ك مېن په چنګ و نی په مېو صا ف

ما بې مېنې نور څه هېڅ تر ي ښکا ره نکړل

که کتا ب په هر معنـی و کـه کشا ف

تر هغه سوری صدیق مخ دیار ګوري

چې په تېرېې دغمزې کړ زړه شګا ف (۱۶۳)

---

(۱): په اصل کې داسی دی( تر ثرا تر یا په نون و کاف) .

## ( ق )

چې خبر نه يې له حاله د غريق

ترو پسوېه کړې د ښو بد و تفريق

چې ئې پر د محبت د تير بد اشته

پور ته نه شي تلی آسمان وته زنديق

غم ښادي دواړه په برخه د عاشق دي

ښه چې نه لري بې دينې بل رفيق

مګر بيا مدد د بخت راسره بيا وشي

چې ښکل کړم زه د سرو شونډو عقيق

چې له درده ورځ وشپه بانـدې يوه وي

د درد منو حال هغو زده ه په تحقيق

ما سوا له ياره کفرو رښکاره شي

چې قدم پر دي څوك د دينې په طريق

د دنيا روزګار زحمت ورته څرګند شو

(۱۶۳) مګر غم د يار صديق له شو شفيق

څو نه وينې په سترګو يار صديق

هو مره زوړ لري په ځان قرار صديق

که د يار د وره له سپو سره ګرځي

خدای دې نه کاچې به کاندي عار صديق

چې قدم په هغه زمکه دلبر کېږدي
هم هغه خاوره توتیا کا خوار صدیق

چې پیغام د یار د وصل وړ ته راوړي
تر هغه قاصد په ځان کا ځار صدیق

ستا د عشق د سورو سندې دې دی نیولی
اوس به څه پرېږدي نیولې لار صدیق

ستا په کوی کې د قاتلو پیالې وېش دی
عاقبت به یې وڅښي په وار صدیق

هوه ورځ به سره لمبه شي شنه دوزه
چې خول زړه لري همېش په نار صدیق

د فراق آواز دې په ایسې پوهېږم
ځکه تل لري مدام نګار صدیق

واړه ستا د مخ په خیال یسې مجنون شو
(۱٦۰) نور به څه کا د دنیا روزګار صدیق

که څوک وګوري زما کتاب د عشق
تر مجنون به شي بتر خراب د عشق

لکه خم په خول مکان خاموشه ناست یم
ملا نه دی لوستی چا ته باب د عشق

که د عشق تحمل نشته په هیڅ کار کې
ډېر شي لا په ښه د ېدن شتاب د عشق

سرا فرازيږي په جهان ترشاه جهان کړم

(په سا) ډېر شه وشو دا عتاب دعشق (١)

په طلب د شه د يدن پسې ځو لګ ګرځي

خدای پوره کا لدي ا لبت کرباب دعشق

د حيات او به په و ځنبي له ظلما ته

په هرچاچې کا رڼا آفتاب د عشق

زور به نه شي تر ا بدي ورځې پو رې

د هرچاچې شي نصيب شباب د عشق

ستا دستر ګو مست يې وړي په ننګې ننګې

زړه مدام لرم په ا ور کباب د عشق

چې بهار بې سوځي تو به مې مه شه

ننن را نوش کړه ساقي ته شراب دعشق

له صد يقي ته نصيحت مه کړه ناصحه

(١٦٦) عقل نه کا ندي هرګز جواب د عشق

په محشر که دعاصيانو شي تحقيق

سرحلقه به بيادوا ړو وي صد يق

د هناد ګناه يې هيڅ دی ترګنا هه

(١٦٧) ترمذهب يې مذهب هيڅ دی دزنديق (٢)

---

١ـ په اصل کې (په سا) نه دی ليکل شوی.

٢ـ دا غزل نيمګړی دی پاتې برخه نه لري.

(کک)

غم له زخم نشته هیڅ له ژبې د بې باک (۱)

اوردی خولېده شي چې سېزي خس وخاشاک

ځان وما ته هیڅ شو د حرم آهو چې گورم

دېر ترما نظر کا په حلقه ستا د فتراک

مخ وما ته یو شو بل بې ده وما ته هیڅ شو

فکر سې هیڅ نه کا نور بې ده په بل ادراک

ځای مې په رښتیا د زړه په سر باندې زما شي

بند به د رضا شي قدم چېرې دا فلاک

زړه په محبت کې د ېر والا ترمهر و ښنم

لاندې هرگز نه وي تر ال نخل چېرې تاک

خله به صدیق پایي بې تا یو دم صنمه

(۱۶۸) نه وینې هیڅ چېرې بې تا دم د هیڅا ژواک

چې داسې ورځ وشوه شو په صحرا اورکې

مجنون وا ره شو له مینې د لیلا ورک

نصیحت د هیڅ ناصح اثر پرې نه کا

د مین سرې د رست عقل شي رښتیا ورک

چې مجنون د محبت ور باندې پېښ شي

هو رته او وشي عقل، پوهه د دانا ورک

---

۱- د «بې باک» په ځای «بېباک» لیکل شوی دی .

چې خاطر تړي د هغو ښکلیو هوا یو سي

د ذړې په د و د هغه شي په هوا ورك

تل له زړه را څخه ته چې څه لا ړشو

په طلب هو د وفا د یو فا ورك

په ژړا ژړا یې چوی تر لمو پر یو ت

په گو گل کې په رښتیا شوز ره زما ورك

د هغه یار د یدن د تورو سترگو نور دی

خدای دې له کا نور له سترگو د هیچا ورك

که رښتیا مدد دې هغه پیر د نن بـو يه

چې رقیب مې کړې له یا وه په دعا ورك

اوس د نامو ننگه ویل چې کړې صدیق ته

(۱٦۹) ها شاي کا د سړي هرم و حیا ورکه

* * *

(ل)

چې په زمکه کې پراته وي گل رخسار تل

ځکه شه د تورو خاورو هي گلزار و تـل

خدای د ښکلیو لب خواږه کړل تر شکر و

ځکه خو ږ لگي د ه وو لبو گفتـار تـل

په مین یې قد ر ډیر تر درست جهان دی

جا یسته که و هر چا ته د ی رو ید ار تل

لیر د بدن د ښایسته په ډ یرځه پسر ه

یوسف سه غواړه د مصر په بازار تل

عاشقان لکه بلبل ، معشوقه گل هوه

په گلونو باندې کا بلبل چغار تل

په ماني مې آشنا زخم په خاطر ږدي

په خنداسې بیا مرهم ږدی په پرهار تل

د صحت امید ترې مه کړه ژو به ومري

چې په سخت زحمت کې پاتې شو بیمار تل

چې مدام دننه زړه ولی ، د لیرمې

عجب لیندی دی دستر گو په گوزار تل

د صدیق سترگې دې خدای اري رو ښانه

(۷۱۰) چې ږې گوري ښایسته دیدار دیار تل

چې یې خوب کړ د راحت په ځان حرام خپل

په بې نامه ملک به ږدي نښان و نام خپل

په دهقان به په هغه ملک تخم ریزی کا

خاص به خاص کاروبار واړه کا انجام خپل

دهیوان مرسته دانا ته نقصان نه کا

د با د ورد عمر اندوه کا ندیمه ام خپل

د جهان کاروبه کل خلل پذیر دي

هر هوښیار د عمر کار کا ندي تمام خپل

په معاش يې د دنيا و قناعت وي

سې طلب لري طلب د عقبا مدام خپل

د همت رکاب په لاس کې ورېږي رښتينې

د فلک توسن په داکاوه رام خپل

تر قيامته صديق ستا په سينه ياد شو

(۱۷۱) د مجنون نامه به نه پرېږدي قيام خپل

دريغه که زما په سترګو وګورې رخسار خپل

ژر به کړې پناه له خپلو سترګو نه ديدار خپل

کله د پرې ياد حور و دا ښايست شته

ته ګوره پخپله د زيبا حسن بازار خپل

تا ويل سبا به سپينه خوله په خندا درکړم

خدای دې تر ويل شم چې شي دې اري ګفتار خپل

دوه سترګې که وايې ستا په لوري ما خلور کړې

لار ګورم له ورايه ته را واستاوه رهبار خپل

مري په خندکدن دی، ګوندې ستا په ديدن ښه شي

راشه په دو ښتنه خه خو وګوره بيمار خپل

ګنج له ماره هيڅ ور ته خالي نشته صديقه!

(۱۷۲) زلفې يې خوښه ما ردي ګنج مې دوا ره دي غذار خپل

د حیا په اوبو د که لرم چشمان خپل

د امید په اوبو تر لرم مژګان خپل

د معیوبي آزار زما په دفتر نه شته

هر چې دي همګي خوږ لرم د ځان خپل

نګهداشت د خپل نفس کړم په مجلس کې

معرکې کا په میدان کې تیغ عریان خپل

په دهقان په دا امید لـه کښته نه کا

لکه زه کړم د ژړا په تر دامان خپل

د جنت هوا مې خیال په سترګو نه شوه

د خوبۍ نظر په خال لرم پنهان خپل

خال په لبو د دلبر په نظر مه شه

هر چې دی دغه توبه لرم عیان خپل

د ژوندون اندېښنه هیڅ راڅخه نه شته

بې تا نه لرم په زړه دین و ایمان خپل

په دنبال د قافلې خطر تل د رومې

د نفس په تلو خبر بې (۱) د کاروان خپل

د صبح طالع په پټه د پسر مسد د کا

(۱۷۳) دوه په شپه د برق ښکاره کا ځان آسمان خپل

---

(۱) په اصل کې (خبریه) لیکل شوی دی.

چې د لبره ګاپه څاره هار د ګل (۱)

په‌شانه باندېیږې هې ېر ها ر د ګل

دېر تر ګل نازک چې ځان لري دلبر ه

ځوك په‌ځه ګا نازکي په‌شما ود ګل

همېشه چې ګل صفت کا ستا له مخه

زه‌ېې تل اورم په ځو ږ ګڼښا ر د ګل

ر نګ د ګل و اته ښکا ره شو په خوښا نه

عجب جوړ کړل پا ڼه ، ر نګ معما ر د ګل

راشه ځه چې سبا سېل د ګلو و کړ و

ته دلبره ، زه عا شق ، بها ر د ګل

محبت یې که د ګل په‌خاطر نه وي

خوار بلبل به ګله کرد پدا ود ګل

هم د لبر ه ، هم‌سا قي ، هم تر انه شته

په مستۍ ځي واړه سره دستار د ګل

ګل چې ښکلي په لاس واخلي لا تازه شي

په بدرنګو لاسو تل شي عار د ګل

همېشه یې په بها روا په مطر به

ان چې کړي دي صد یق اشعار د ګل (۱۷۳)

---

۱-دا غزل دوه ځایه مکرر لیکل شو ی د ی .

څه عجب ښلي، هوا ره ځي د بهار گل
وار په وار پرې شگفته کا هر دیار گل

عجب رنگ د کاڼي، بوټي واړه گل کا
په بهار شي دا همه سمه، کوهسار گل

واړه جونه، زلمي میل د بهار کا
جونه گل، زلمي لا گل، ځي تار په تار گل

په گرېوان، په اوربل جونه ږدي په زلفو
زلمي لا په ډ تي (۱) ډېر ږدي په دستار گل

لوی هلك، سړي د گلوخا لي نه دي
هم زاړه هم داوړني ږدي (د) گلزار گل

دا بهار په عجب ډا د پـه زمانـه شي
چې وړې کور، کلي، کوڅه شول دوست بازار گل

بودوه درې رنگونه نه دي چې شماره شي
دا بې شماره رنگ به څوك کاندي په شمار گل

هر کی، زرغونه، سپین وسره، سره دي
خدای پیدا کړل په ډېري تېري انبار گل

څو نظر دسترگو لگي واړه گل دي
اسمان گل، ستوری هم گل، زمکه، غبار گل

نقاشي که د گل، گل پاڼه کا جوړه
نه چې جوړ کا څوك په دا صورت انوار گل

---

۱-(ډ تی) لمکل شوی دی.

ته دلبره چې تر گل نازك دې ځان دی

هغه له نورو وړې تر بار خو هسمن خار گل

خدایه ما په جهان تل لره ، تر دوره

څورا هرو مې په چمن کې صد هزار گل

آفرین په دا غزل با ندې تل وایه

چې ایاض مې شگفته کړ د گفتار گل

خوارصدیق په نظر نه کاندي بل گل ته

(۱۷۵) څوبې گرځي په نظر رخسار دیار گل

که په زړه کې لرمچوب (۱) دښه رخسار خیال

د نور چا نه خو هم دا چې دخپل یار خیال

زه چې تل ستر گې ځنیم د دې د پاره

چې چرچم پرې دور خه د یار هذار خیال

خدای دې یوزمان له ما نه جدا نه کړه

را سره ښه دی د یار بوسه کنار خیال

خیال دښکلیو هسې نه دی چې جدا شي

تل په ناست وي هم په خواب هم په بیدار خیال

خدای و روله نامرا د تر خپله مراده

که په زړه کې د بلبل شته د گلزار خیال

---

(۱) په اصل کې (چب) لیکل شوی دی.

اوس چې دوست د یار په خیال پورې ژوندون دی

چې رفیق مې شو دیار لیل و نهار خیال

بې دیار له خیاله بل شه پکې نه هته

(۱۷۶) که په زړه کې دصدیق واخې هزار خیال

* * *

(و)

په دریاب د میو زړه زما حباب شو

چې گردان باده ساقې د میو ناب شو

په دریافت د حقیقت ، حقیقت یافت شي

د حباب چې هوا ورکه شوه دریاب شو

د نفس را تله تر تلو پورې موقوف دي

په خزان دچمن گل پاپه رکاب شو

د زانگو په زنگول هلك اوده هي

په غفلت مې دگردون دگردش خو اب شو

د خبرو په معنو کې صدیق غواړه

(۱۷۷) په دریاب دمحبت درنا یاب شو

چې په گلو مبتلا یې هند لیبه !

خدای دې مه کړه دگلو نو بې نصیبه

په بهار نندا وه شه کړه دگلو نو

دخزان وار دې تور کړی دی غریبه

د وصال خوښي په یار، په رقیب غم کړه

په خندا پورې ستا ده وا ره دي حبیبه

چې له یاره یې قهاروې بل لور ته

بس کړه ژبه ترغا بش لا ندې ګړه ادیبه

هغه یار تر تا و تاوله اژ دې دی

چې تر سیا نه یې له سول شته له جریبه

په ژړا مې ورته وې بوسه به وا کړې

په خندا یې راته وې چې وا کړه شیبه (۱)

له مې خوب خندا ارام شته دی په عشق کې

ستا په عشق کې راته پیښه ده عجیبه

واړه حال زما د عشق په کې بیان کړه

په منبر خطبه په زور لوله خطیبه!

د مرهم په خای چې ما لګه په پرهار ږدي

(۱۷۸) د صدیق ګیله په هاشي له طبیبه

د واړه ستر ګې دې ستم کا بې حسابه

چې په وژلو مې تلوار کا لر قصابه

خدایه! تا په هسې یار وا نه دې هیڅ ا کړم

چې بې داوله شي له هر وعې له کتابه

---

۱- ( شیبه = وبه شي )

مګر رسم د دین آئین د ښکلیو دادی
چې یې سینه په عذاب ده تر ثوابه

درد و غم فراق خوږ ته په عاشقۍ کې
نور څښي هم له ښادیو له اسبابه

هسې ډوب په دریاب تللی د فکرت دی
زړه بیرون مه شه د زلفو له ګردابه

په طلب د مشکو ځه ختم چین ماچین ته
چې دې زلفې شته تورې تر مشک و نابه

د مغان د میخانې خاکسارې ښه ده
د جهان د پادشاهۍ تر جنابه

شیخه! ته په ورد و زهد و تقوی خوښ یې
زه خوښې غوارم له چنګو له ربابه

په طلب کې صدیق غم کله د سر کا
(۱۷۹) زر غواص په مټ و کاږي له دریابه

سترګې دې فتنې کا چې بیدارې شي له خوابه
مخ دې نمر خجل کا چې بیرون شي له حجابه

مخ دې راښکاره شي چې سیه زلفې ترې باد یوسي
تور شپه رڼا شي چې ځي ابر له مهتابه

ما وې ژاله ده چا ګومان پرې د شبنم کړ
څاڅکي د خولو دي په عذار دي له ګلابه

مادمی کتاب(۱) د لعلو لبو دی نو ښلی
څه اړه تعریف کا څوک له نقلو له هرا به

ته زهد و تقوی کړه شیخه ته ور ته وزګاروې
کله ماخالي وینې له چنګه له ربابه (۲)

(۱۸۰)

مخ دلبره چې بیرون کا له نقابه
خو اچه سر په ګریوان پو دي له حجابه

ستر کې پاکې وديدن و ته په کار دي
لو ر په پوره تر ګتبې هسته (له) مهتابه

تل څنهل د سترګو منع د دیدن کا
منع له دي د دیدن سترګې بې خوا به

په ظاهر مطلب طلب له یاره مکړه
خاموشي د حلیم له ده بې جوابه

وراه روو ته اړي لار نژدې شي
زر غواص په مټ وکاوې له دریابه

مشوش په لکر لار د ګناه څه وي
تل کریم ګناه کمتر کا تر ثوابه

دګر دون آسیاب په سر کرځي صدیقه!
ته د رزق الله بښنه څه کړې بې حسابه (۱۸۱)

---

۱- (کتاب) لیکل شوی دی.

۲- دا غزل مقطع نه لري او نیمګړی ښکاري.

چې خبر شوم د سنبل له پېچ و تابه

پېچ و تاب يې ستا د زلفو کا پيدا به

د جهان په مخ رڼا ځاته د نمر کا

په ذره نور د عشق لمر کا ترافتا به

د آسمان گرځېده، مېنه، د زره نور يې

نور په پورته تر کعبې شته له مهتا به

د مطلب هر گور موندل رښتيا محال دي

صحرا يې موند لې چا ده له سرا به

چې موندې په دا عالم کې وفا نه شي

په جهان کې کيميا ځکه ده لا پيا به

د ديدن منع ځنې کا ندي د سترگو

(۱۸۲) قتل ديدن کا د صديق سترگې په خوا به

چې په خواب د مرگ ځا اوده نه يم بې خوابه

په حساب اوده غفلت کړم بې حسابه

بې خبر، خبر د هيڅ په احوال نه يم

تاب چې ورک شو ورک له تابه يم بې تابه

اوده هم په ورو په زور په غېږ بېدار شي

مې جواب کړم په جواب شوم لا جوابه

د جرس په غږ بیدار تیار اسباب کا
فرصت له وي داوده هیڅ تر اسبا به
هیڅ عمل د صدیق پټ په ظاهر نه دی
(۱۸۳) دحجاب آشنا بې وینې بې حجابه
د درد من له آه څارداختر نه شته
د لوګي ستر ګې ته غم د مجمر نه شته
د ګلزار خوایی رښتیا تاج دنظر شوه
هیڅ نظر مې یوجدا له د لېر له شته
که په عشق ګې هغه، دا دواړو ته شاکړم
التجا مې ور ته باوې د بګر نه شته
غنیمت را ته وصال د مېن خط شو
د بهشت په بوستان دا سبز و تر له شته
توره بخت مې لب د یار په موی غبار کا
د یاقوت په اور هرګز خاکستر له شته
په باطن صالح صدیق له هر یوه کړم
(۱۸۴) په صیقل د آینې کې جوهر نه شته
د کوثر په اوبه سیوزنده د لان شته
چې اې ښو د عشق په تل دوې مردان شته
د هیواد سفر تر ستر ګو ځنبل زور کا
چې خبر په هغه، داوي درویشان شته

ونژ دې يا رته ناره بې اد بي هي

چې حضور په حضور کوري ناظران شته

په بدن مې د بلبل دزړه آرام وي

څو نرگس لاله نسرين په دا بوستان شته

سعادت نښان وچه ظل د هماى دى

التجا چې ورته نه کاندي رندان شته

د فلك اسيا ويژون دحوا د ثکا

دوصال ښاد من په ژاړي چې هجران شته

ستادز لفو دزنځير حلقه مې طوق شوه

خط په هاکې د قمرى په کر بيوان شته

په مجنون صحرا بې دره صومعه شوه

چې په زړه مې خيال دستر گو دزندان شته

دمخفي رحمت صديقه واترې څواړي

(۱۸۰) معنوي طبيب څخه هغه درمان شته

چې خبر کړم پير ه د هر له آفته

څړي غم راڅخه وچ کړل له هيڅه

له دوستى اه د ښمنى د خلقو تښتم

دواړه توکه خالي له دي له هد ته

د هرچاچې اصل بدوي بد ترې زيږي

څه فا يده ده دا ستاد له تر بيته

چې په هیڅ توکي اثر په هیڅا نه کړي

څو پکاره دي د هر چا له لمسونه

د عاشق نظر پې یاره بل سر نه وي

فارغ وي له دوزخه ، له جنته

چې په خوله د ترخومو د زړه سوځ کا

مستغني وي ګل له شوره ، له هر بته

د جهان خوښي که واړی نن هغه کا

چې په رغم شو له زېږه له زینته

نن هغه سړی رښتیا ولي د خدای دی

چې یې لاس وکښل د د هر له دولته

که یاري ځواري یاري له هغه ځواره

چې بېرون دی لن له هر ځواره جهته

نوا هم په اسانی موندلی نه شي

څو دې زړه خلاص شوی له وي له غور ته

په نعمت به له خمر بت شکر وکاږي

چې اګاه شي د جهان له مصیبته

هیڅ باور په نا آشنا په آشنا نه کړم

خبردار شوم د هر چا له حیلاته

و هر چا وله خواره ترنی شکر دي

د صدیق و یل د پیر لـه بـرکته (۱۸۹)

خال د ورو څېو په مېدان در څخه شته

ننداره د دوست جهان در څخه شته

که مې سر په بها غواړې مخ ښکاره کړه

چې دېدن په بها ګران د رڅخه شته

ته له خیاله نظر هیڅ مه کړه وګل ته

چې ښوېل مخ ښه آر بوستان در څخه شته

د یوسف غوندې به څو ک په کښي پراته وي

چوړ کو هي چې زنخدان در څخه شته

څو به ما غوندې په عقل کې پریشان کړې

چې اوربل دا تور پریشان در څخه شته

هیڅ صرفه را با ندې مه کړه ما پرېوله

بانه تېره آبرو کمان در څخه شته

تاویل چې داو پښتلي زما روغ کړه

که حاذق لب دوسان در څخه شته

همیشه پرې د وېني خوره د څو پوزرو تو

سو ر زمری په څو ند پېزوان در څخه شته

په طلب لکه سکندر صدیق حیران شوم

(۱۸۷) خضر خال د خوله حیوان در څخه شته

په موسم د ګلو ښا کرم کارو بار ته

لور په لور کا ته په مینه کرم ګلزار ته

د تسبيح په شمار ه ژبه د زما لده شي

بو رخصت د نفس بس دی وخول شمار ته

گران بار د تعلق په د زړ باندې مه شه

خس د بحر اهر زر پسې کنار ته

په درياب سرمد ام لکه حباب کا

اشارت همدغه بس دی سبکسار ته

لاله زار ژوندون چمن دی د بلبلو

چنگ او نی ساقي بهار دی و ميخوار ته

مرگ رښتيا فرقت د گل و د بلبل دی

د مهجور ژوندون تحقيق دروغ و نار ته

اعتبار د صديق کله په ژوندون دی

(۱۸۸) اشارت يې د وصال را کاږي دار ته

پريشاني زما ظاهره ده و يار ته

د عزان له حاله څه و ايم بهار ته

په حضور طلب د يار له ياره گران وي

گوره څو موجونه وړی بحر کنار ته

چې دې کورم وايم خلق څه با ووکا

د مجنون خبر نه لحي اعتبار ته

عقل واره د ساقي پيا له له ماوري

محبت ده اوس له ما گرځي په بازار ته

خیا لت به احتساب کې رسوا مې ده

خل به کور نیولی تل د روږي بازار له

اشارت مې د څنډرې په مرګه قبول کړم

د منصور اجازت وصل کا ودار ته

اور د مینې دصدیق په خاطر بل شو

(۱۸۹) د ماهرو تاو به مې رسي ودستار ته

ګنج د قارون هیڅ دی چې غني وي هغه زړه ته

زړه هغه غني وي چې هیڅ له څوځې وغواړه

سیر د بهار کا هغه څوک چې خوشې غوا ړي

څوک چې تل خوشحال وي سیر څه فایده هغه ته

سترګې هم هغه دي چې وینه کا ندي د ښکلي

ښکلي چې نه ګوري کسی څه فایده کا ووته

زړونه هغه مړه دي چې مې هم د مینې نه وي

مینه د ریت ژوندون شوه ژوندون لشغه وی و مړه ته

یار به وي صدیق چې مې به هم د وار څمجن وي

(۱۹۰) مل به مل هغه وي چې به لار کو وي وملاته

په هر چا چې مینه کړي به طمع ز یا ته

به هغه طمعه هغه مینه مې ما ته

ما پخپله تجربه کړه پخپل عمر

نصیحت ځکه کاره و ا یم هر چا ته

که هوښیار تر ما له نورهته په د انحه هي

دپسر نصیحت خلق کا با با ته

که په لېوي که په ډېر صر فه پرې مه کړه

لاس کوتاه مه کړه هیڅچیرې له خیراته

دام درم طمعه له مو ره بلاره مه کړه

که خوا امرده ې خبر شه تر مماته

که رښتیا پادشاه دوخت وا ې چې زه هم

قناعت کړه قناعت کړه ، گوره ما ته

که تکیه دې دگردون په دون همت کړه

دقارون په دوه به ځې تحت الثر اته

بې ریا اخلاص په هر چا برابر کړه

لا په تیره په اعدا کړه ترا خواته

هم غیرت که په دنیا واې د لیا ده

نور په داکې الله نه هغه کم و زیا ته

که حاصل دې د تجرید په بالو (۱) برشي

دعیسی په دود به وخیژې سماته

د دلیا په لوبې شه لو بې صد یق کا

(۱۹۱) چې د نیا وارهمیراثه ده میراته

چې بې هسې حسن و وکړ زېږي گل ته

چاې هومره مینه وشو ده بلبل ته

۱ - د (بالو) په ځای په اصل کې (بازو) دی چې معنا بې دېره ښکا ره نه ده.

که امید یې د ښه مخ ننداره نه وي

د نرګس رضا به نه وي غوږ په دل ته

ما به هم له ښه دید نه صبر و کړ

که مې نه وی پیدا ستر ګې و کتل ته

ګویا ستوري د اسمان په شپه ځلیږي

چې د دروازې جوړه کړې وربل ته

ګل، سنبل دواړه دسته اړي په مخ کې

سینه سه کړه نور و ګل و سنبل ته

په ظاهر صورت تندرست زړه یې د ل هوی

د هر چا چې سینه پر یوته ودل ته

چې د یار جورو جفا وړي سم له عمره

د عاشق صورت پیدا شو و زغمل ته

په لحظه لحظه مرګو نه پرې تیر یږي

هر قدم دې چې څوك اخلي و بیدل ته

تر هر حرف یې بوی د مشکو دعنبر ځي

(۱۹۲) د صدیق سینه پیدا شي و غزل ته

زه د زړه په سینه کړم دعا و تا ته

ته د زړه په قهر کړه څېرې وما ته

له زما په بد سیفی لوبې ویر یږم

څېرې نه په بها ر ته وجاروځې تا ته

ته جفا په دا کوي چې زړه مې بد شي
په جفا (۱) مې مينه لاشي په تا زياته
چا وما ته د خپل يار کوڅه ښندله
تر جنت مې خوښې لاشوه په کې زياته
په غما ز د ښمنه اسمان کا نې ورېږي
(۱۹۳) د صديق ربيار چې شه وايي و تا ته
د مستا نـو محبت شي و شراب ته
د گوهر په طلب ځي غواص دريا ب ته
د هوا له ورلو زړه سا ته که شه کړي
شه نظر و کـړه د بحرو حباب تـه
د شبنم دوستي له گل سره تل نه وي
تل په لړ گرمی تري دروي و آفتاب ته
محبت يې ستا د زلفو پيچ وتاب کا
تاب سنبل نه کا د زلفو پيچ وتاب ته
د انصاف دفتر د خط په مخ څرگند کا
په نوبت به په حساب دروي حساب تـه
په يقين به د صديق حفظ ابرو وي
(۱۹۴) که روان شو وخپل يار عالي جناب ته

۱ـ د دويم کل (جفا) په ځای بايد (وفا) وای.

څو مې ځله شي د يار ښکلي دېدن ته
هسا هسه ځله مې بيا يسې ځنکدن ته
د اجل منت لرم که نن رادرومي
په سبامې ستا فراق بيا يې مردن ته
ستا په مينه کې مې پرېږده هسې ښخ شوم
چې حاجت مې بيا تې نه شي و کفن ته
د يوسف قصه خوږه په يعقوب لګې
لکه حسن د شيرين ستا يې کوهکن ته
واره ستا د مخ له مينې دې باور کړه
که مې چېرې سفر کې يو ر ته شي ګلشن ته
ما يې بوی د زلفو تول بيامونده په کور کې
نور د مشکو په طلب درومي ختن ته
غابن دې آب وګوهر ورکا په درياب کې
لب د آب د لعلو وبا خښه يمن ته
په د يدن د ګلو مينه کړی ء بلبلو !
ګوره کله به بيا راشي و چمن تـه
يار په څټو ستر ګو کله صديق ځور کړ
(۱۹۵) په فراق يې وزګار نه شو ودېدن ته
په جهان کې ستا د لبو شراب نه شته
سوی زړه لکه زما بل کباب نه شته

په ماڼې مې در د زړه چیرې مات نه کړې

دشخوا کې طاقت هیڅ د حباب نه شته

لوی حجاب ځنې ل د سترګو د دید ن شي

د دید ارو سترګو پیش دحجاب نه شته

پټو سترګو د دیدن فایده یونه وړه

د نرګس د سترګو هیچرې خواب نه شته

د زاهد دست افشا نې بله نغمه کا

هغه څړ دلته په چنګ و رباب نه شته

د کې نور پیالې د مې په هوښیاری ښنې

یو پرې ماغو ندې بل مست وخراب نه شته

هوښیار تله د عمر درست په اوبه ګوری

تله تر عمره ډېر د برق په شتاب نه شته

وایه ما به بیا د کوم یوه په شمار کړې

ستا په در د کشتګا نوحساب نه شته

سړ بن ، کرلا نی، دواړه پښتا نه (۱) هم

دا وېل د هیڅ یوه په کتاب نه شته

صدیق مرګ له تورو سترګو دیارغواړي

(۱۹۶) د غمزو د مقتو لا نو حساب نه شته

---

۱ـ د (پښتا نه) په ځای (پښتون) لیکل شوی دی.

بلبل په چمن راغی گل واره شگفتن ته

آراسته اند خود را نی ځان ښهفتن ته

ساقي دميو مطرب لباب دلبر يم

ما سير درضوان دی باسهر وګلشن ته

در بتکده پيش بت دا حال برهمن گفت

مسلم بچه ما بسوليږ نارگسستن ته

صد ساله عبادتم بريکت نگه از ما برد

آن شوخ پر ہوش بن تار شو و رفتن ته

هرگز نکنند آهی ازتيغ توای جلاد

عشاق په رښتيا دی تيار ومردن ته

دلعاشق شيرين ومن عاشق روی تو

مشهور پهعالم يم پيغور وکوهکن ته

صديق عجب شعری په فرسی به افغانی

(۱۹۷) گل قند کا پو هيری مختار شوگفتن ته

چې پهخيال په کبرگوري وآسمان ته

ښا يسته پهخپل ښا يست غره دي ځان ته

دعيسی په دود به ره خلق ژوندي کا

که قدم واخلي دمړيو گورستان ته

ترغاښونو يې خجل وا ره گوهر شي

په لبانو يې طعنه شي دره مرجان ته

چې مې زه په کوڅه ته‌ر شم هوسره خوښ شم
نورمې هيڅ محبت نه‌شي ورضوان ته

ما په کورکې شايسته تر يوسف بيا موند
په طلب دې پسې نور درومي کنعان ته

دامې زلفې په‌سپين مخ راته تاو تاو شي
که کافر دی چې تاويږي مسلمان ته

د يار سينه‌مې هم دردوه، هم مر هم شوه
نورمې هيڅ آرزوي نه‌شته و درمان ته

عاشقي که سر ترپايه وا ړه زيان ده
زه هم خپلې سينې و درولم زيان ته

آزاده عالم تر روغ سلامت گرځي
ليو نې په ليونتوب دروسي زندان ته

دا غزل د خان د دې غزل جواب دی
«که‌دا استاستر گې‌راوجار ياسم ځان ته»

(۱۹۸) ديار ښکليوستر گوزره صديقه يو ور
اوس يې بيا په خوخوگرځي وايمان ته

آسوده پيدا هيڅوک په جهان نه شته
بې خزانه گل هرگز په بوستان نه شته
دگلونو خند اکله بې ژړا وي
بيهوده په دا چمن بلبلان نه شته

د ځوانۍ آرمان په وخت د پیرۍمه کړه

سود به تیره چار هرګز د ارمان نه شته

فراغت تمام له غمه آزاده کا

د تصور د ګلو غم د خزان نه شته

د دنیا عیش وعشرت په دا نا غم وی

هیڅ راحت خوښي د چا په زندان نه شته

د سکندر دا نه له خضره بیهوده شوه

او به څاڅکی د احسان په آسمان نه شته

چې خوښي صدیق بې غمه خوله نه کړه

(۱۹۹) فراغت بې غمه هیڅ په جهان نه شته

چې مې مینه دسوین مخ را دروسي زړه ته

ګویا سره لمبه د اور د روسي واښه ته

ښه د یدن ته د یار هو سره ځلبلا ند یم

لکه تبری چې محتاج وي و اوبــه تــه

بې له ښکلي مخه خدایږ وکه خاطر ښې

لیره دیره هغه و کا لدي پل څه ګــه

د وصال قاصده زر راځه لارغه شول (۱)

دواړه سترګې مې ځلور شوې ستا را تله ته

ګونډې یار مې په خندا هي دا تر غاړه

چې په خوب کې میاشت راځي وګریو انه ته

---

(۱) اصل: دوصال قاصد ژ راځه لارغه شول.

ستا د پله خاوره که را کړي منت بار دم
چې تو تیا غو نډې يې وسا تم ليمه ته
و عاشق ته نصيحت او روا نه دی
د ژوندون نصيحت څه فايده وسره ته
چې تمام عمر له مينې فارغ نه شو
(۲۰۰) د صديق آفرين څکه شي وزره ته
خدای مې مه کړه د نادان سړي په نغوته
چې دانا مې په دانش بانډې پردې ګوته
تور ه جن هوښياره ، نه ده تر څه سوینې
چې بې عقله نا پسته وي سوينه ده ته
اصالت لره نه خوی خصلت په کار دی
نه بدخويه که ووځي دستن ترو ته
ډيرې ژبې ګويايی په کار نه دي
و رويوه خبره لانه ده سا کته
بصارت چې يې دزړه نه وي پر ايښی
خلقه و ينم د سر په ستر ګو ته
چې دزړه فهم يې نه وي په داغه شي
که وغوا غوا يه ته واغوندوي خته
نه صديق نه ډير هوښيار نه نه کم عقل
(۲۰۱) پل سړی له دواړه يو ګڼه په کته (۱)

---

۱ ـ همدا سې ليکل شوی دی .

چې پیاله نوشي په میخانه مستان نه شته

چې غوغا کا پرې بلبلي بوستان نه شته

حریفان د میو ډیر دي ولې څه شي

چې مین په ښکلي مخ دي رندان نه شته

د فلك په ګهواره کې پراته ژاړي

چې قرار کاندي اطفال راهګان نه شته

لاس دخضر سد د ویتم کوتاه شو

د غیرت کاندي له ما کې یې ګوان نه شته

په خوني دریاب کې لاړ اوس تباهي شو

چې و کاړي مې جهاز بادبان نه شته

چې یې تل وم پرورده په هغه سیوري

نن په ما د هغه ګل سایبان نه شته

دلسوزي چې نن هیڅوك یو په بل نه کا

معلومیږي دلسوزي په جهان نه شته

کله نوم د سخاوت له دنیا لاړ شو

چې فنا شول له دنیا کریمان نه شته

ورځ و شپه د یعقوب ځکه په ژړا ځي

چې تر نمر ښکلی یوسف په کنعان نه شته

د ګردون له بیدادی دریغه ارمان دی

ما په خیرې تل لمن کړه ګریوان نه شته

ځکه راز د زړه صدیق و بلې نه شي

(۲۰۲) چې د راز په حال خبر محرمان نه شته

که‌ساقي د پیالې ستوکا نه‌ي ما ته
هغه دم به‌صدسا له‌توبه کرم ما ته

همیشه به‌دسا قي په درکې او سم
په‌ژوندون به‌څنې نه ځم تر سما ته

په بې صبره ورځ قارون په‌کښته لاړ شو
په صبوره بر خه لاړ عیسی سما ته

چې دده‌ین د دنیا غم ښادی ته شا کړم
ساقي لاسې آرزوې‌وي ستا وما ته

د با قي ژوندون پیا له له هغه غوارم
چې‌خبر دی نن د لوح له اسما ته

تر قیا مته صدیق خوښ په دازندان دی

(۲۰۳) ودې نه‌وځي ستا دز لفو له ظلما ته

وې مې له‌ما دروسې څه‌به‌وواهې و ما ته

وی یې له‌تا دروسم غم به درست پریږدم‌وتا ته

وې مې ستا په‌غم کې دښا دیووراته شاشوه

وی یې نوره‌نه شته تردا بله ښادي زړه ته

وې مې ستا له‌غم مې به‌اوس تیه‌طاعوني شي

وی یې کشکې ومرې دزړه حال مه‌وایه چا ته

وې‌مې چې هجران دې ددوزخ تراووربتر دی

وی یې دجنت ترخوښی داګنه لا زیا ته

وې مې چې په سا هم د وصال په برخه شا د کړي

وی بې چې نصیب د يخدای ژړا کړه تر سما ته

وې مې چې داخو ږژوندون هر گوره په ما تر يخ شو

وی بې چې خوا په د هجر زيات دي تر نبا ته

وې مې ستا په مينه کې مې نام و ننگ ته شاشوه

وې بې غم سړی راضي کا تل نوي بلا ته

وې مې ستا د مينې په پيغور لکه منصور شوم

وی بې مين نه گوري و شرم وحيا ته

وې مې زه خو هر کله خووم ستا په رضا وم

(۲۰۳) وې بې ما ونه کا ته صدقه ستا رضا ته

داجز به دچا ده چې روا نه شوه کنعان ته

بوی د يوسف وړي د يعقوب و گريبان ته

واړه کار دعشق دی بې گناه هم گنهکار کا

هيڅ گناه بې نه وه چې يوسف ته وزندان ته

بربې د تجريد د محبت په تن پيدا کړل

ځکه په رښتيا دی عيسی تللی و آسمان ته

نور د محبت رڼا په مخکې وړي دخضر

ځکه بې قدم په تياره سم د روسي حيوان ته

سور به ځنې نه شي مستسقي که د رياب نوش کا

د روسي په طلب تشنه و چاه زنخدان ته

عشق پاره پاره کړ زړه زما اوس په کوګل کې
لیمثال یې ګوره هزاره ،درومه بوستان ته

لبو ته مې لعل واړه هیڅ د بدخشان دي
کله ځم په مرسته دسرو لعلو بدخشان ته

لاس به په ارمان چوچم په غاښو تر ټیا ته
بخت مې مقصر دی چې یې نه رسي داماان ته

سر اري صدیق یا رته یې وړي که یې قبول کا
(۲۰۵) پښه په خوله د ملخ میږی روان شو سلیمان ته

په صورت کې مې څو دم شته
را سره خیال د صنم شته

په هر ځای را سره مل وي
څو ملکو نه ، غر و نه سم شته

یو بیغمه معشوقه ده
له عاشق سره تل غم شته

کله ځا ندي کله ژاړي
په دنیا کې څوا دم شته

چې رقیب له یا ره بیل کا
د پخه خدای فضل و کرم شته

هومره زړه پسې ډېرخم وي

چې د يـار د زلفو خـم شته

چې ياري په رښتيا کا

نن صديقه هغه کم شته (۲۰۶)

چې خپل عشق دعاشق ور سي تحقيق ته

کا سراني کا په جهان کوري ړ ايق ته

عاشقان وا ړه با زنه دخپل سر کا

لکه پر يوځي په غوا ص دريا بعميق ته

چې يې لا ندې سر تر پښو په منزل نه وي

د هغو ر سد به نه شي وشفيق ته

په تقليد، رسم ،عا دت عاشقي نه شي

د سلوک نصيحت هغه ناېده زنديق ته

د تصديق روزگار جدا د کا ذب بل دی

د هرچا اصل رجوع دی خپل فريق ته

غا ښ دې آ ب ود رو ور کا په درياب کې

لب دې آب په يمن و بخښي عقيق ته

چې د يار په سينه سور نه شو ترو خه شي

که د خضر عمر و بخښې صديق ته (۲۰۷)

که يا رخا وره د تلي وا کا دا رو ته

په ارز و به يې خوندي کړم و ليمو ته

ستا منت را باندې بار ته يې قبول کړه

در داوښوکه زه ليسم ستا و پښو ته

ته په سينه کې ماڼې کړې زما مرګ ته

توان مې کله شي ستا نورو خرخشو ته

زه په سحر ستا د وو سترګو حيران يم

په کوګل کې چې رود جوړ کا ندي وژړو ته

په ساده پوهه مې هيڅ سلامت مه کړه

که تشبيه دې دعنبرو کړم ورېښتو ته

که او از دزرکو نه ختې هيچېر ته

باز به چاو رپسې نه وړلی درو ته

د هما زو په خوغا به څه پروا کړم

زمری کله کا نظر چېرې وسپو ته

زر زوې جامې په تن کناس زړې کړې

زما نه کيږم تيار زما تې وخرو ته

لاس رنګين په سره او سپين لره صديقه

(۲۰۸) ها وسته نن زمان ځي سپينوو سرو ته

څوک زما دپاره ووايي دلبر ته

چې ما بوځي په خندا چېرې خپل در ته

وايم څير به ورته ګورم چې بړې مو ړشم

سترګې له لرې طاقت چې ګورې ور ته

د دیدن طاقت یې نه شته په شپه ګرځي

ښاپیرکۍ کله په ورځ ګوري و نمر ته

د ور دوزې په زور ناره بویه چې واوري

ورو نری آواز فایده نه کاوکړ ته

د صدیق مینه په ما اوس په دنیا شوه

(۲۰۹) چې دلبر دزماني در و مې وزر ته

زمانه لکه منصور بیا یې ساداو ته

په خندا ځم چې واد رمې یار کنار ته

محبت یې و هر سخ را ته ګلزار کا

چې خلیل ځوندي مې واچوي و نار ته

که هر مې په سبو شته ساقي اوس واکړه

څو پیالې ، بیا بې هر ګورې بل وار ته

محتاج مند دمیو زه دیر ینه سال یم

په آرزو د ساقي دروم و دربار ته

په سلا د پیالې ستاهومره خوښي کړم

لکه څه چې د طبیب وشي بیمار ته

واره ستا داتورې سترګې بړي ستم کا

چې آهو له خلقه تښتي و کوهسار ته

د ژوندون امید دې پرې کاله ژوند و نه

چې نژدې شي څوکه وتا هوندې خولخوار

د مانې زخم پهه، مرهم نه اخلي

طبيبان مې حيرانيږي و پرهار ته

ته چې زخم دمانې کړې دې نور شاکړې

يا دې هجر ې نظر نه وي په يار ته

خدايه يا هغه ساعت کړه په ژوندون کې

چې ساقي، چنګه ورباب خم و بهار ته

که يې هم د جدايي په خاطر نه وای

په وصال به صديق څه ژړا کړه يار ته (۲۱۰)

د سحر نوا بلبل ماېي و ګل ته

په رهبر مسافر ښه رسي منزل ته

ملايکه دزړه د عشق له حاله څه زده

راز د يار کله وايه شي پر دي، خپل ته

د عاشق پروا د سر له داره نه شي

د منصور وصل قريب وي دار ختل ته

د وصال قدر رښتيا په مهجور ډير وي

خدای دې نه کا يې دچا آسان مشکل ته

عاشقان د معشوقې په حال خبر دي

و نامه دا د بلبل و زيړي ګل ته

ترلمن پوري يار ه شو ستا په عشق کې

څه حاجت دی د پاره کرېوان ګنډل ته

حقيقت له معنې دا څه دی صد يقه

(۲۱۱) چې پرېشان څمو نه جمع شي ودل ته

همواري پېښه و يار ته په صفا ده

اشنا يي د بېګا نه (۱) لوېه سزا ده

زما له وکښه دزخم په الماس کا (۲)

انه ېښنه له خاره څه د نازك پا ده

لامې نقش د بوريا په زړه باقي دی

چې په تن مې نخښه پاتو د بوريا ده

خوب مې تل نمکڅشان په تورلمه دی

چې وسمه دیار د خيال ځنې جدا ده

چې بې دوسته هغه څه مخ کا صديق ته

(۲۱۲) پـه هغه مـيـنه هـغه و ته خطا ده

روښنايي په مخ دماه تا بان ستا ده

په نظر کې بينايي نما يان ستا ده

حرکت په هرپيدا کې ستاد عشق دی

په ميدان کې لکه ګوی په چوګان ستا ده

---

(۱) په اصل کې (د بېګا ته) ليکل شوی دی (۲) اصل : زمانې د سکه زخم په الماس کا

دسخا پهلاس دي دېر وړي ماره وي

دهر گل خوبي دبوی په بوستان ستا ده

په دوه گې ورك رهتیامخ دآفتاب شي

چشمه پټه په قطره د حیوان ستا ده

په هرخه کې ممنه مخ دیار ښکاره کا

ونیا یي ښکاره پناه په دامان ستا ده

دېرله ستر گو نه جدازره ته نژدې وې

غم ښادي تل په بهار په خزان ستاده

په هیار الوده ستر گې لیده نه کا

د یوسف پشره ښکاره په کاروان ستا ده

دکعبې طواف مقصد واره حاصل کا

په کوخه خوښي حاصل درضوان ستاده

خوك به خیال لکه چې ته ، په صدیق بلی کا

ښه قصه یې سر دفتر په دیوان ستا ده (۲۱۳)

دڅور غم برخه زما خسته ناښاد ده

دادخواهي مې له فریاده په فریادده

دعاشق نا مه علم د ښکلي عشق کا

د قمري حلقه په غاره د آزاد ده

د یعقوب جز به دعشق وه په کنعان کې

د یوسف خوبي راوري ور ته یاد ده

مرګ په دام کې کښېوتل رښتیا د صید وي
بې تدبیره نیول بوهه د صیاد ده

اوږې ملک راته لږدې نږدې کا یار ته
د وصال لږمنه بې دا که بل هیواد ده

تار په تار مې زلفې ستا ژبه ها نه کړي
شانه تراشو هاله کړې د شمشاد ده

سلامت به صدیق اوس لکه منصور شي
(۲۱۴) د شاګرد طریقه عین د استاد ده

آه په هیڅ آواز کې مه خواره بې درده
که د درد په حال خبر نه یې ای درده

سر اي په همه لار د جانبازي وي
بیا رته له دې څوکه وتلي له دې ګرده

د مطلب موندل رښتیا په ډېر ضرور شي
د آزاد په باخت بازي بر د هي له نرده

د دو شش په طلب ډېر د وخال بر بو څي
د شکست ابرو يي څوګه وړي له نبرده

اور ګرمي د محبت له اوره بو وره
(۲۱۵) او په یخ شوې د صدیق له آه سرده

هر بنده چې روګردان شي له معبوده
ګل خواري ګا دا بليس په دود بې بوده (۱)
د نادان په دود يې زيان په ځان قبول کړه
نور همه طمعه يې ګل پريکړه له سوده
د رست اسيد يې وا سته په داد اماشو
د عقبې کار ونه تل ګڼي نا بوده
هر نادان چې محبت په سيم وزر کا
د خپل ځان حيا تي تل و يني موجوده
د دنيا په وداى نادان خوښي ګا
چې خانه يې له حباب ده، يا له دوده
د دنيا مثال او به يا لکه باد دی
څه د سيم و زر استادخواري مردوده
د ناصح په نصيحت د رومه کامياب شه
د بدخوا خبره مـه نغوږه مسعوده
سالکان له هره کاره خبر دار دي
که خرقه يې تم پسه سوده الـوده
د صديق سره که بخت سلګري وکا
دا ياز په دود به بادشي له محموده (۲۱۶)

---

(۱) - بهبو ده څوندي لو سقل کيدی.

عشق پروانه کا د هیڅ له زیانه سو ده

امغمي گوره په سول داو رله عو ده

صبرډیر ترا و بو هم په هورته سور کړم (۱)

اور وښتما په ایرو پټ وي تل بې دوده

نس مې لاسته په آسمان غوارې کافر دی

په بد خوی طلب راحت ده کړه نمرو ده

د مرید تعظیم د پیر عزت طلب دی

داسعادادب طلب له یې سر دوده

دعارف نظر په حق وا ړه په حق شو

په رښتما لویي ایاز وړي له محموده

سجده گا صدیق د زړه په زړه کې بیا مو ند

(۲۱۷) نمر پیغور موږي د هر در له سجو ده

د چمن زیب وزینت خوبي له تا ده(۲)

د جوهر صیقل جامه جوړه صفا ده

د فکرت په اندیښنه تله په دا لار شي

په پرده کې لار د زړه زړه ته نما ده

دسیلاب آواز په غوږ اورم چې دروميي

په خشکی نشانه عین د دریا ده

---

۱ - په اصل کې (صبرډیر ترا و بو په هور ته سور کړم) دی.

۲ - په اصل کې د (له تا ده) په ځای (صیاده) دی.

د لیلا له کوځې زړه پرې منع نه شو

که مجنون ته سینه او ته د صحرا ده

مې دې لار ستر ګو ته کا پنهان دې ګرځي

که جلوه یې په هیشه کې تل زیبا نده

په زنځیر ترل په کله منع کیږي

د یوسف چې لا ریه زړه د زلیخا ده

په لمن د دوست نیول تر نمر ښکاره یم

ترا غزي منګول زما د ګل آشنا ده

ګل امن له خاره کله نغښتې دروي

د وصال مې په زړه ښځه تمنا ده

لوی حجاب و تا ته «ته» خپله حجاب شو

او که نه بې «تا» په تا کې تماشا ده

که د عشق مجلس ته لار د صدیق نشته

(۲۱۸) ورته لار ګوښه د زړه جوړه تنهاده

چې د چا ترې د ښادی تمنا ده

له دنیا نه هادي وا(۱) موند لې چاده

که بې یو زمان خوښي غم یې تر ډیره

په هزار رنګه خو غم وته پیدا ده

---

۱- (وا = وایه)

چې يې درد په زړه کې ستا د مينې نه وي
په ژوندون کې د هغو کومه وفا ده

چې تا وويني بدتر بتر مجنون شي
که د عـوه د زاهد د يره په تقوا ده

زاهد لاس له ځانه وکښل حورې غواړي
شي توبه د ربخه د احـمه بده بلا ده

چې يې نغده سودا پر بچوه نسيه کا لدي
په يقين زما د غه پوهه خطا ده

غنيمت شمه ي ما شق که نمم للاس وي
چې په ياد يې ديدار تپر ه ليمه سا ده

خجالت په لفع له مومي صد يقه
(۲۲۰) چا چې کړې اند يښنه ان د سوا ده

نزد يکې تا نه هم ستا ګرانې جانې ده
ورکك خاطر غذا رهتواد روحانې ده

د د ريا ب ژبه په بانګ ولمند وا يې
چې برمنلو ته داو بولاره عريانې ده

د فنالار د عـاشق ده و مطلب تـه
لار د سپاندې اورته تلجاودانې ده

قناعت غني له سورې د هماى دى
د نعمت شکر مې خط په پيشانې ده

په استوګه مې دا خلق غمګین مه شه

کور موشته مې همیشه پیا پا ني ده

په مجنون غوغار شتیا د محبت وي

دي رهتما یا ري دیار جاني جاني ده

په پیاله کې مې د ستر ګوا و ښې ګرځي

د مخمور پیاله په لاس کې لړزاني ده

فراغت په قناعت کې د صدیق هو

(۲۲۱) جمعیت طلب هر ګوره پریشاني ده

دعاشق غمګینه ورځ راحت افزای ده

پادشاهي په اور وېته د ګدا ای ده

همیشه په ځان سختي پېښه که مرد بې

له هغو وکي تویښته کله د همای ده

مر تپه د کمېنۍ تر نمر وا لا هوه

خاوره پاس پروته په سر دعرش د پای ده

دیقین نقش دېردو اخله په لاس کې

هغه واوره که عالم ته بازي پای ده

فراغت د مرګه له غمه خاطر مه کړه

خوښي کله کړې چا دغم په سرای ده

پرورش د تن هو کړې خبر د ارنه بې

ښخه تل هرنه پېرۍ په ګل ولای ده

د فنا ا ند یښنه هیڅ د هغو نه شته

چې نا له یې لکه قطب تل په ځای ده

همیشه یې ستا وصال وولي و دارته

د منصور مینه صدیق ته رهنما ی ده (۲۲۲)

د نا دان په نا دا نی دا نا یي د ه

و دا نا ته نور د ستر ګو بینا یي د ه

نصیحت د هر هوښیار نا رد نادان دی

دانا وړې له نا دانه دانا یي د ه

توره شپه اخر سبا ته سپینه ورځ شي

سپین و یښته د تورې پورې روښنا یي ده

ها ثبت چمن بهار خزان جدا کا

بقا کومه یې له دوسته آشنا یي د ه

مسافر اخر منزل پر یکا صد یقه

له فنا طمع بې ځایه بقا یي ده (۲۲۳)

ما د خلکو جفا و لیده لر حد ه

چې له ما سره یې کاندي یې هد ده

هسې له چې پردي برشول خول مې شه دي

خول پردی مې لاخا لي نه دي له حد ه

هر یوه ته بد ترهو بهتر لید ه شي

ځکه شه شو ه د هر بد په نظر بد ه

وېره هيڅ دچا په زړه کې درب نه شته

خلقه شوه ددنيا په کار مشغوله

په بد زوی نوم د پلارو نيکه بد شي

بد پيدا مه شه د هيچا له کوره

که زما اولاد زما په بد نامی وي

خدای ورو له لا طفل تر لحده

چې بدي يې ما ته وسي تنها شه يم

هسې نه چې زيست مې نه شي بې له ده

زه په دين ودنيا هرم له تا خوارم

ته مې داد عا قبوله کړه احده !

پيدا بد کردار هرکوره ډېر خجل يم

لا په دا کې اميد کړم ستا له مدده

ډېر عالم به وارېږه ستا په روی پاخبه شي

(۲۲۳) شفاعت د صديق ډېر کړه محمده !

په بهار مې ستا دمخ زند گاني ده

ارزوي مې ستادشان بې نشاني ده

هيڅ زمان مې زړه بې تا هيچيري مه شه

ما په سرا خستې ناسر گر داني ده

بدا موزه به هر گزنه وي چې شه شي

کوم بوه دگلخن کړې با غباني ده

لکه خضر لنډه لار در اوږ ده له کړي

رسیدل ترېا ره زر جا نفشا ني ده

دوربېده ساقي‌شرابلره په زره کې

غنیمت در لره څو ور ځې څوانې ده

تجلا و ته ېې کانې په امید دي

چا زده څه وه ېا په څه «لن ترانې» ده

همیشه ځکه صدیق شو ستا په‌عشق کې

(۲۲۵) چې بې دوسته ورته هیڅ زندگانې ده

د جهان خوښي په وصل د آزار ده

د بهار لندا ره غم په ېوه خار ده

سبزه لاحسن د توروخاورو ږ یرکا

آینه د مخ په خط کله زنګار ده

دچمن د ګل پرده رښتیا د ووال دی

کوم باغبان ترلې لا ره د ګلزار ده

دشیرینې ېونظر د کو هکن بس دی

که همت وي آسانې وا ړه د شوار ده

لېوني د رزق له غمه فارغبا ل وي

ودانې خوپه کوڅه وا په بازار ده

شکلي مخ په پرده لا څه عاشق ویني

لا رنیولې په یوسف چاد خریدار ده

دعاشق لەزړە بە عشق منع بەچا شي
دطبیب ابو لي لار چا بە بیما ر د ه
شیخ بە کو ایج د صومعه لا ړشو کمعام شو
دمنصور نامه آ فتاب بەسر د ار ده
دد يدن وعده مرگه نه شي وعاشق ته
(۲۲۶) سر ښندله د صد يق شمله د ستار ده
د هر چاچي نن له تا سر ه ياري د ه
ور ته پيښه دجهان واړه خواري ده
د کمغروري ستيزه هيڅ شي زورور ته
دعاشق خو معشوقه وته زاري د ه
ستاه ستر گو په ديدن به بي صحت شي
دهر چا چي ستا له ستر گو بيماري ده
د قيامت سختي خوك هډ يا دوي ما ته
تر هرڅه سخته د هجر د خواري د ه
ستا په عشق کي دمجنون نامه په ما ودي
په چي تا ته ياره پا تي هوښياري ده
که د ز ړه په وړه پو هيږي سا تل به کړ ي
کله تا له چازده کړ ي دلداري د ه
چيري له چي په آزارد چازړه چه کړي
تر هرڅه د مظلو م لا بد آزاري د ه

که انانځنه د عمل یار کړې عیب نه شته

په دنیا کې نوم د ښو به یادګاري ده

چې یې لاس په ښکلي نه رسي هیڅ یې کا

(۲۲۷) د صدیق توبه همه له ناچاري ده

چې په زړه یې ستا د خال مینه ځايي ده

څه پروا مې د عالم په رسوايي ده

د یعقوب د یوسف حال تر اوسه ښکاره دی

په دیدن مې ستا د سترګو بینایي ده

په کوڅه دې د رقیب ګذر و مشه

څه خپلوي له بد خصلته رو ښنايي ده

چې په مزد یې د جنت د حورو کا لدي

ځکه هیڅ د پارسایانو پارسايي ده

په کوڅه د عاشقانو یې تېر مه کړه

د زاهد تقوا هر ګوره ریایي ده

چې په تخت یې بیا ګذر خوار یې په زمکه

که هر څو په پورته لاره هوايي ده

هومره وایم چې اور به دی هر څه سوزي

په تقریب به یې څه وایم جدايي ده

خوار صدیق دې قبول کړي چې مین شو

(۲۲۸) ستا د مینې تهمت ډېره بلا يي ده

سرابي مې په د رباب دخپل آبروی ده

ابرويي تل دګلاب په رنګ و بوی ده

په سا تل دخپل آبروی تر ګوهر زيات شو

دا و بو تللو بيا لار ګله په جوی ده

دخوالی بهار وفا را ښکاره نه کړه

چې د زړه خوښي دګل په رنګ و روی ده

د نفس شماره د ژبي په تلوار کړه

تل حساب ته ها نه بوره د هر موی ده

قيمتي ګوهر ضايع رايګان مه کړه

ګرانه لاهور ته تر درو ګنګوی ده

خپل قيمت قدر هر چا و ته ښکاره دی

آئينه ښکاره هرچا ته دخپل مخوی ده

له حيا به صد يقي سخ په حجاب اغاري

(۲۲۹) آئينه يې دد بدن په جستجوی ده

ستا د حسن خوبي ماو ته ښکاره ده

چې سوزي مې د يې تر څاپسته بيچاره ده

خپل قسمت زاهد په کوانج کې خلوتي کړ

څکه زوړ په ده د ښکلو ننداره ده

بس کړه يو څله مې وخښه چې مين شوم

د اجل پيا له پيا ګله د وياره ده

ستا دزلفو تاربې غو ارم وګنډون ته
که سینه مې په دوړ هم پاره پاره ده

دا خووایم چې په ټه عمر حساب شوه
جدايي که ستاد عمر په شما ره ده

واره حال له جدا يي راته وا يې
په بيان د هجران ختمه دو ګاره ده

چې بوه زوه زره ها د کا سزا مو مي
(۲۳۰) دصديق ښادي د غم پدا جا ره ده

چې بشره يې دخپل يار په زړه رقم ده
خداى رسول يې بلهمه کړه ، بس کرم ده

په را تله دې ګل زما دخاطر ويل شي
د بهار خوښي د وصل په قدم ده

په يا رخو دې دا خو يې دي که سبا سې
خورمه ا يښې په زړه ګل باندې شبنم ده

دى په ان زما ترمينې پورې ياد شي
په مجنون که نامه پورې د عجم ده

چې ان ورځ د صديق تيره په خوښې شوه
(۲۳۱) ځکه لا رور ته نيو لې سبا غم ده

هوا پرخه ستا د زلفو د پر یشان ده

آرزویي وا ړه په زړه کې په زندان ده

تنګه نفس د ګلو هر کله خزان وي

ګل ژړا ته وازه خوله د لمې خندان ده

په چمن کې پا نه ګل میلما نه لږوي

جدایي غمګینه ورځ ګل د بوستا ن ده

همیشه د عا شقا نو احوا ل پو وي

قصه نن په خوی زما د بل بل ان ده

که په بوی دې د ګل زیان رسي د ماغ ته

خو بد کړه لیوخبره وروزما نا توان ده

په تعبیر ، قر بت د وصال د معبر دی

چې لید لي میاشت په خوب چا په کر یوان ده (۱)

پټ به کله د زړه رازشي په جهان کې

(۲۳۲) د صد یق عاشقي نمر اوس د آسمان ده

مینه مینه خه ده وا ړه غم ده ، ځګر خو ن ده

چا نه کړه ترسره پوري کړې خو مجنون ده

چا و یل د مصر توره د پرهه غوځول کا

زه وا یم د روغ دی توره په د بیلتون ده

---

۱ - په اصل کې دا مصرع داسې ده: (... میاشت په خوب په چا ګران ده)

ستا قصومې خوب په دوا رو سترګو کې حرام کړ
چا ویل و ما ته چې قصه د خوار افسون ده

په وجدا یې ده د هیچا نصیب دې نه شي
بل زحمت اسان شو که بوغمه ده که قانون ده

یارمې جفا کار شو، که باور کړې په جفا کې
لا زه یې په ده مینه تر اوله اوس افزون ده

هیڅ زړه سوی یې نه شي په ما خوار د خدای د پاره
دا د زړه سختي که خواره برخه (۱) د پښتون ده

را وړه هغه سترګې چې یې ووینې نور ستا شي
ډېره خزانه په زړګه ښخه د قارون ده

څه شو که ډېر ځښې مست یې مه ګڼه هوښیار دی
لږه هوښیاري مې د یار ښه تر افلاطون ده

ډېر ویل ښه نه دي چې پرې دوه بېل شي صدیقه !

(۲۳۳) لږ خبره ښه ده چې د دوو پیو ستون ده
خوله ځایه را پیدا د نیا دو ني ده

نور څه نه ده سراسر مکرو مني ده
په خولوی یې دانا کله اعتبار کا

د دنیا دوستي خرګند ه د ښځې ده
چې په خواب وخیال یې مینه په دنیا شوه

په رښتیا د هغو برخه جنو ني ده

---

۱- په اصل کې د (برخه) په ځای (که) لیکل شوي دي.

دافلاس څښتن همه څني آزا د دي

که بلا ده خو په غاړه د غني ده

د دانا تر فهمه کمه ترذره هـوه

و نادان ته گو یا ختته سل مني ده

هوښیارانو ته ریښتیا لکه دو رمه ده

ابلهانو ته شهر ینه تر گني ده

چې یې کاندي سرز نشت چې پرې پوهیږي

د سر ي په ځان بلا خپله مني ده

دغه گټه به دې خاورې شي په گټه

لګینه دې فیرو زه که یمني ده

چې په هیڅ شي دې رضانه وي بې بدو

له هغه د همنه څه رنگه ایمني ده

چې یې سر د صدیق د پر تر آسمان بر کړ

(۲۳۳) که په دین دنیا لو یې شته کمینې ده

وي هوښیار څېر د هرڅه له تـأ ثیره

په گذار څرگند جوهر شي له شمشیره

همیشه صحبت د هیچا برآبر(۱) نه دی

د لندې وژی څېر زده کړه لـه تیره

---

۱- د(برابر) په ځای (برار) لیکل شوی دی.

ولې لا د زړې ونې ښکته د روسي

ښه تر ځوان په دنیا مینه لري پېره!

بخت مدد د بدو هېڅ د هیچا نه شه

وچ نبات کا بد شومت جدا له شیره

قید هېڅ دافتاده چا کړی نه دی

په حلقه د دام شوه زمکه دامنګیره

ارغوني په عشق کې ستازه پېچ در پېچ یم

ښې دې نه کا داو وخدای بې زنځیره

د صبا دفکر په زړه او دخپل صبر وي

حلقه ستا د زلفو نه ده بې نخچیره

بد له بدو سړی وړی ، نېکي له نیکو

(۲۳۵) صحبت هېڅ له شته صدیقه بې تأثیره

د آسمان ګرځېده نه دي بې تأثیره

زخم تل څرګند جوهر کا له شمشیره

حق ناحق دې خپل ژوندون بیا یې تر سرګه

زور د ژ ی د لیندې درست غواړه له تیره

دزړې ونې ریښې تر ځوانې کلکې وي

په دنیا مینه تر ځوان کړي ډیره پېره!

فکر لا ر د رزق په ما د روزی بند کا

په هلک ګوته شي هره نی پر شیره

خط د حسن زره بې نها زکاندي د زلفو
د گل خاوره همیشه وي دا منگوره

زرد سترگو تر څنبل ځیژی ته شاکا
غشي څو په تاوېه ژی ځي له زهگوره

د صد یق غوتېه یې کومه له زره وا کړه
(۲۳۶) نوکک چې شه دی خلاص دغوټې له تدبیره

که خو بـي وه د یـوسف ښکلې مشهو ره
ستا خو بې ده ځنې لا د یره منظو ره

لکه نقش په حجر کې تل قا یم وي
ستا بشره لرم په زړه همسې مستوره

په کاته مې تمامي صبر د زړه و ړي
ځکه زه شوم روغ عالم ته بې صبوره

ستا د سینې آه مې همسې ترخو له خوږ ي
لـکه سره لمبه راخوږي لـه تنو ره

د وصا ل بهره مند عین په بهشت وي
د دوزخ حقیقت غوا ړه لـه مهجو ره

بس کړه دا چې اوس په ما باندې تور یږي
خدای دې نه کا څوکک خبر له دې ضرور ه

زه پیغمه لور په هیڅ خبرد ا ر له یم
د جها ن له ښو ښا د یو له سر و ر ه

په ورغ جدايي چا وکړه له يـاره
جدايي کا دا کاروانه بې دستوره
څوک چې زار د جدايي کا نا پوهي ده
آشنايـي وا ړه د دنيا کـا بې شعوره

د هجران په تيغ دې نه وي نور قبول دي
که سې مرګ ته په تاوون هوې ياپه توره
خداى دې يو زمان جدا ورځخه مه کړه

(۲۳۷) دصد يق دزړه څوښې، دستر ګو نوره!
چـا چـې و ليوه پـه تـمره
دنيا نه کـړه هـغو ته يـره
څوک به ځاى د زړه په سر کا
څوک پـري سينه کا بـرسيره
سينه مـه کـړه پرې هـوښياره
خوا ړه نـه دي بـې ګنډيـره
زړه پرې مه تړه که ښه کړې
په دا څـه شي کـه شـي ډيـره
لـکـه واشـي هـسې دروسـي
د نـيا سيوره ده لـه نمېره (۱)

---

۱- نمېره = نمر

په ښا يست يې خط مه هه
دنيا ده څولون که ېږه (۲)
ورکول کړه چې يې پل خوري
دا هنر زده کړه له شېړه
سخاوت کوه که مرد يې
که هر څو شي تېره پېړه
څو ژوندی يې غم خو مه کړه
حيات له شته دی بې سېړه
ګوره څه شي، څوک خبر دي
هره چارکوه دلېړه
مر د په نه کا الدي هيڅهوري
(۲۳۸) د صدق خبره هېره

په ژبه تېره ډېره ده تر خاره
ګل دخار جدا يي نه کا له کناره
زخم ډېر تېره د ژبې ترخنجر وي
په چوچل مچی ور دروميي تر ښاره
نه مې لاس په سخا ښی په کمي خبر شو
نه کمی کا زر يمين و تر يساره

---

۲- همداسې لیکل شوی دی.

که صدف غونډي خوله وازه کړم او بو ته

په لمن به ګوهر زيات ورم تر هزاره

که په درد د محبت مبتلا نه واى

څو به خوښ خاطر زما وله روزګاره

هيڅ غبار د تعلق را پورې نه شته

سبکبار لکه نسيم ځم تر ګلزاره

چې په خپل عيب صاديق سولا پيدا کړم

(۲۳۹) له هر چا مې نظر قطع شو يکباره

که پو ځل کړي ته پرده له مخه دوره

تمامي جهان به ښه ډک شي له نوره

په هر ځاى کې چې در دمن و بلبله پيښ شي

خالي نه وي يو نفس ستا له مذکوره

دا خمار مې ستا د لبو په چوچل دى

که مې څښلي تازه مى دي له انګوره

لکه زه يم په د پدن پسې د ښکلو

خداى دې نه کا څوک د اهسې بې صبوره

په هجران کې مې د حال پوښتنه څه کړې

نور به څه وايم و تا ته بې ضروره

د فرياد داد به په چا غواړم له چانه

جدايي د پسا رستم کا بې دستوره

چې يې زخم تر قوا مته لـه رغيږي
خداى دې خوښ نه کاسړى په هغه توره
د لاله سينه په څه داغ ده پوهيږې
د خزان سيلى پرې اورشوه تر تنوره
تل سزا د پرده درود. که پوه يې
خبردار پـه حقيقت شه لـه منصوره
د طو با سيورى مې خلکو تـه بخښلى
ما ته بس ده ستا د زلفو سا يه گوره
ستا د ستر گو فتنه پوه د صديق نه ده
(۲۳۰) تمامي جهان پرېږدکه شو له فتوره
روښنا يې دې دجبين ځي له ديواره
صفا يې د آيينې وي بې زنـگـاره
په کوهي که په زندانکى يوسف پټ دى
تيز نظر ورته ظاهر وي تر اظهاره
که د خلقو و نظر ته نا بـينا شـوم
په هر لور مې نظر له دى بې ديداره
د ديدن منع په ستر کو ځنـبل مکړه
لږ و ډېر نظرو تا ته دى تر پاره

ما به کله د انه بند په بند د دام کا
په آغاز انجام خبر یم له دې کاره

د قسمت پوښه په څه شي، خبر نه یم
د اسرار نکته له دې شي بې پر کاره

د ښو په عشوزره د صد یق وله
(۲۳۱) سرد خاروي تل ختلی تر دیواره

چې خورې زلفې په مخ کا ندې دلبرره
خاله به په نسیم کا ښهره وره

تل دښو نامه په ښو یا ندې عالم پردې
د چمن خوبي صبا وري له صحره

د یار غم ورې خبر په آفت له دی
د وحدت کمند گرداب دی بې خطره

د تهمت کانې د سر ملامت مکړه
سروې مه شه په بوستان کې بې ثمره

د پیر دولت به کم زوری ته فایده نه کا
د دریاب قطره نصیب یوسه گوهره

د تارك رضا که وا بې لار ضا ده
بې و ضا نشته رضا د یار په غوره

که طلب د آشنا کړې بویه صد یقه
(۲۳۲) تر مقصوده پورې دروسه بې سفره

توري زلفې دې څوک نېسي بې تدبيره
وکعبې ته رسد نشته بې شبګيره
خود په خود طالب مطلب د مطلوب خول کا
زليخا د يوسف تل وه دامنګيره
محبت عين ثواب د ښکلي مخ دی
آزادي موندلې چا ده بې تقصيره
چې د زلفو حلقه ستا تري کمه نه شوه
غاره نشته يوه خلاصه له زنځيره
د عاشق طلب وصال د معشوق دی
خول مراد څواري مريد له خپله پيره
د زړه وينې مې نوشه صرفه پري مکړه
لب و لعل و ته دې ورم پيا له اجميره
محبت ور ژلی مه پوښته له حاله
په ګوزار جوهر ظاهر وي له شمشيره
بيهوده په بل سرخوپه بيار ته ګرځې
ښه ديدن ر ښتيا نژدې دی تر نظيره
چې صورت يې د صديق په کاته زر شو
(۲۳۳) د استاد نظر بهتر دی تر اکسيره
ماچې وليده د استا ښا يست نګار ه
څه صفت کا څوک د حورې پريواره

د پري سيوږه اثر د اهو سره نه کا

د نګاه اثر دې زيات وينم ترشما ره

چې مې ستا نګاه په دوا رو ستر ګو ځور کړ

په جهان کې څوک تر تا نشته اوڅاره

د بهار ګلو نه خس غو ندې ښکاره شي

چې په سيل د بهار ځي، کړې ننداره

که اثر د آشنايي نه واى صد يقه !

(۲۴۴) ستا و زړه ته به غمو نو نه کړه لاره

آب د لبو دې تيری کا تر ګو هره

صفا يي يې ر ښتيا يوو ږه له کوثره

سا دسيو په پيا له غواړه که يوه يې

هستي ز نه د ه ا ـ ي نوستيه سيسر ه

فکر بل په خا طر څه کړې تو کل شته

د قلزم له مو جه غم څـه شنا و ره

د طلب ګا مو نه بند کړه قرار کينه

په د رباب جهاز قايم کره بې لنګره

شها د ت مې د غمزې په خنجرغوا ړه

ز نـد ګـي د خضر دلته ده کمتر ه

د جنت خو بې مجلس داهل د ل وي

تر د و ز خ بتر خولو ي ده مکد ره

دلباس زهد ، تقوا راخخه نشته

مخ دصافي آیینې دی بې جوهره

وسیله د صدیق عجز شو و یاره

(۲۳۵) آشنایي دمزي څه ده له گوهره

خال تر زلفو لاندې تل د دلبر گوره

دانه دام شوه صیادي کا په نمر گوره

که په ها ره د کوثر مرې نه یې وینې

مخ په خط کې د دلبر جا نورو رگوره

محبت مې له زړه ستا له دی دور وینم

آب په زړه کې مضطرب دگوهر گوره

نور په تورو ستر گو کیږدې بې نقابه

په سینه کې مې گلگون د ساغر گوره

په ظاهر لکه او به باطن مې اور دی

اوره تل پروته په تن داخگر گوره

قناعت لکه سایه همت همای دی(۱)

پورته درومه د همت بال وپر گوره

دطلب لمن صدیق لاندې تر پښو کړه

(۲۳۶) په دریاب جهاز قایم بې لنگر گوره

---

۱- د(همای)په ځای (هی هی)لیکل شوی دی .

چم جما ل يې را شه‌گـو ره

چې جلوه كـا لو ر له لـو ره

د يقين ستر كي ر ڼا كـړ ه

هـغـه ستـه شهـا كـــو ر ه

په يقين سر ه پر ې څور شه

انـــد يښنه و مكـړ ه نـو ر ه

بې پر وا هم له هر چا ده

هر م نـــه كا لـــه بـغو ر ه

مه بې لور څوا ړه مه زو يه

نه زو و لې هـ ه له سو ر ه

خو د له خو ده خود نما ى ده

هـره ډ ېـره ده هـر كـو ره

له كر مه بې ا ميد كړ ه

بيا له قهر ه بې څان ژ غو ره

د ا بې نخښه د ه د مينې

چې هر هـم سوز ي بې او ره

هو مره زور به د چا نه وي

لـكـه ستا د عشق ز و ر ه

ظاهر بين مه شه صد يقه

يا ر دزړه پـه‌ستر كو گوره (۲۳۷)

عجب خو له لري ترا وه

وا تنـو و تـه تيـا ر ه

زه يې چا له په حساب کړم

چې غمزې دې دې بې شماره

حال د زړه را وايه نه شي

و اوره ستا له ډيره ډاره

عمر تېر وا ړه په غم شو

ته لا نه يې خبر داره

د جلاد تر تېغ په هور ته

ستا غمزې وينم خونخواره

سرومال وايم چې واخله

په دانه يې پر وا داره

يا مې سر دی يا مې مال دی

ما څخه دې دا دوه کاره

ما چې وينې ورته خاندې

په رقيب شې منت (۱) داره

وا ړه ما زړبا ندې وژنې

بويه وا وره له دې کاره

---

(۱) په اصل کې منه دی .

راشه ترس دزړه دې وکړه

و و ير يږه له قهار ه

څه کړم د موهلې نه شم

را ته پښه شوه دشواره

اوس به صبر په نصيب کړم

لاس مې نه رسي دا داره

که وفا نه وي صديقه

جفا لا ښه ده له ياره

(۲۴۸)

ته په سيل د صحرا د روان يې له کوره

زه په کور دننه ناست سو ځم بې اوره

مروت د آشنايي دا هومره نه وي

لکه ته په ما ستم کوې هر کوره

ما رضا خوله پر ينبې، ستا رضا کړم

کله کله ته زما رضا ته ګوره

ستا په تور بې درست وګړي کاو ما ته

شرم نه کړم دوګړي له پيغوره

دښادي غولي يې درست راشخه ونيو

ستا دغم لښکر يرې راغي لوره لوره

په امید بې دوصال لاهو مره گرځم

اوکه له ، بېلتا نه پري ایستم له زوره

(۲۹۳) غم ښادي په آشنايي کې دي صدیقه

که بې توان دغم لري آشنا یان گوره

ما ورځه د جفا بیا موندله له یاره

دوفا امید به څه کړم له اغیاره

چې راضي بې په دیدن وم ترکلونو

نن هغه راته بهتر کړ ځان ترخاره

چې وفا ورسره کړم ، جفا ترې مومم

تجربه مې کړه په دا عمر خوواره

چې نېکي يې په فطرت کې کښلې نه وي

د هغو ویره به څه شي له آزاره

د بد ی خصلت به لاړ و رځخه نه شي

که د عمر سن یې ډېر شي تر هزاره

که وځان ته فتنه نه یوري ځان ژغوره

د بـد خوی واري فتنه وینم تیاره

د نېکانو آشنايي خبر ته د رومي

د بـدانو آشنايي ځي تر اشراره

چې داروېږي د زحمت په هېڅا نه شي

د شفا امید به څه کړي له بیماره

په قیامت کې وهېڅا ته ښکاره مکړه

(۲۵۰) د صدیق عیبونه پټ ساته ستاره

د هرچا سازي ناسازي زسا یاره

واره وره شي محبت شي ستا د پاره

بې رقیبه موږدلکم دیدار لیده شي

کله گل موندلی را (۱) چادی بې خاره

چې بې مرگه دي دیدن غواړي دروغ دي

د منصور وصال هرگز نه وي بې داره

جدا یـي د اشنا بې سره ملده ده

د خزان جفا بلبل وړي له بهاره

د صدیق له زړه هرگز وتلی نه یې

(۲۵۱) د یعقوب یوسف دل نه وله کناره

په چمن کې چې پیداشي گل بې خاره

دا لطاف موج والا کا تر دیواره

زوغونه پري تر قیامته شکر واپي

ز مکه تور چې ستا قدم شي پری یکباره

چې د عشق وښاوته تل بې دست وپا وي

مخ د غم په وهل سور غوا ړه له ناره

---

(۱) ـ وا ـ وایه

په نامه دې د کارساز بو لم کارسازې
دا درسي مې په فریاد وکړه داد اره
کریمان په کرم سرهنډ ي رښتیا دي
سرغنه دی چې ان تیر شو له دستاره
دبهشت په یافت به شکرصدیق نه کړم
(۲۵۲) اریړه دمین زړه دی بې دیداره
دوارو سترګې وخورم که مې بې ستا له دیداره
پورته کړم بل مخ ته که زیبا وي تر ګلزاره
دبربښکلې مې والهدل په سترګو تر یوسفه
لاده په جهان کې څنې ستا بشره او ښاره
ګرم ملامت نه یم که مې صبر دزړه لاړشو
تاپه کاته یو ورواړي ما ته نا قراره
روح راځخه دروسي ستا په تله چې له ما دروسي
دم راځخه مه ځه، ګنه مرم د خدای دپاره
درست عمر په غم کې همیشه په صدیق تیر شو
(۲۵۳) نشته په جهان کې تر عاشقه بر خه خواره
چې فنا و غ شو د دنیا له کاروباره
د مجنون په کار هرض څه کړې هوښیاره
ملامت مې په تندي دی قبول کړی
د عاشق پروا دې څه کیږي له عاره

ښه دیدن وته یې سترګې ومـا راکړې

څکه وړم نفع د ښکلیو له دیداره

درد وغم راته د ښکلیو منفعت دی

چې زه کړم خرید فروخت له دې بازاره

چې یې تل په صومعه عمر تېرېږي

ځان په ه اساتي پناه له پرهېزګاره

هسې مخ مې خاطر وړی دی باور کړه

چې یې درست په سینه سور یم له ګلزاره

درست په زړه د ننه درد د صدیق وینم

(۲۵۴) د خندا هنر یې واخیست له پرهاره

چې یې کړه زما د یار په قامت سازه

سرو ځکه شوه تر هر سر فرازه

واصفان یې تر صنعت رسولی نشي

د صانع صفت یې تېر دی تر اندازه

درست د یار قامت ستایم که سرو یاد کړم

په معنی حقیقت اهل دی له مجازه

صورتي یارمې په سترګو لیدونه شي

سرګردان یې په طلب یم له آوازه

د خاطر خوښي مې هر کله په داده

د محمود په سترګو پرده تلې ابازه

په منصور به روايت د قتل چا کړ
که څوك نه وای خبر داورده له رازه

دفراق ژړا به کاندي پري وګړي
که قصه د خپل احوال کړم و آغازه

چې نوبت مې داجل د پیا لې را شي
د هوا مرغونه بند شي له پروازه

طالبان به يې د زړه په مينه خواري

(۲۵۵) چې غزل د صديق يافت شي له پيا ضه

چې دا شپې ستا په غم شوم اضطراب زه
نه پوهېږم چې په ويښ يم يا په خواب زه

د راحت ساعت وصال دی چې آخر شو
اوس په هجر کې ستا څو پېښم عذاب زه

تاويل محنت پېښه، راحت محال شو
اوس د دې خبرې کوم و کړم جواب زه

ته چې څوږ د شماز انو په ويل کړې
د بلا په خوله کې تاور کړم خراب زه

که مې ستا سترګې قصاب سر که ته و بولي
په خندا خندا به ور هم په شتاب زه

لکه ستا زلفې په مخ چې پېچ و تاب شي
همې شان يم ستا په غم کې پېچ و تاب زه

په ډېر غم کې غم زما د صورت ورك شو
تا د عشق په اور نیولی یم کباب زه

بې اراده بل کلام و ما ته نه کا
په آواز باندې چې غوږ کړم در باب زه

نه مې دوست رتې له دره نه مې اولې
په دا الوی منزل کې با تې هوم کرباب زه

یوه ورځ په د فنا په باد فنا هم
دزمکې په مخ د زمکې یم حباب زه (۱)

داورنگ په تخت خند اصدیق په دا کړم
چې د یار د در د سپو هوم په حساب زه (۲۵۶)

تورنمد په غاړه د ماتم په صحرا گرزه
ژاړه ژاړه همیشه په ژړا گرزه

ډېر وخندې روږو په حضور زما ژړلې
نه وایم وتا ته چې ته تل په خندا گرزه

غم خو آشنا بې ده آشنا بې د هیڅا مه کړه
نه رخو لدې جدا له پو له بدو تنها گرزه

څه عجب روزگار دی په دنیا د تنها ای
هرڅا وته شا کړه په دنیا کې جدا گرزه

---

۱ ـ همداسې لیکل شوې دی .

بار د ملامت له ځانه واچوه که بنه کړې

خلاص کړه ځان له غمه همیشه بې پروا ګرزه

کاني په سر نه خوري چې میوه نه لري ونه

خوشحالي وتا ته په طلب کړه د نیا ګرزه

بار شو د طلب لرې په پورته به تلی نه شې

پر د تجرید د راوړه بیا هاله په سما ګرزه

سپوره که په لار د محبت د ر سره مل هې

لاځنې حذر کړه په دالارکې یکتا ګرزه

ګوندې بري دا نه د صبر شنه شي، بر ئې وخوري

(۲۰۷) وو ایه صدق ته چې ته تل په ژړا ګرزه

بېهوده په هوا ورك له ځانه بر و سه

د معنی ځار ه هیڅ له ده د ر معکوسه

تجلي د نور په پورته تر کعبې شته

هیڅ اشیا ئې خالي نه دي له جلوسه

په هر ځه کې هغه سخ دی چې لید ه شي

آیینه د خیال نما ی لري عروسه

د حبش نامه دې هیڅ رهتیا ترخال هوه

د اګر ځو اې جدا ده له آبنوسه

د ظاهر زینت جدا، باطن جدا دی

قدر هیڅ ئې دانې مه خواره له بوسه

دغفلت اوده به وېښ په شر و شور کا

اوده مه شه په اندېښه د پېر تر خروسه

یوسف ته عیب عشق د زلیخا شو

(۲۰۸) د صدیق مینه د عیبو کړه جاسوسه

په زړه هسې رنګه داغ یم له ناکسه

چې هډې علاج مې هېڅ نه شي تر بسه

هر ناکس که نن په ملک شاه جهان وي

زیاد کس په فهم پېر کم دی تر خسه

که تحقیق پرې د جنت خوښي موند شي

اهل جنتي د زا اهلو له جوسه

که یې تیر لکه نعمت کا څوک تر ستوني

عاقبت به ئې حاصل شي له مګسه

هر ناکس ته چې ما طمع د وفا کړه

تر وفا یې جفا ځه کړه یو په لسه

اوس هغه زما ومرګ ته په تلوار شو

چې به تېر وماته تېر و تېر نفسه

دا ګردش د زمانې دی چې لیده شي

چې شړی به قدر ځه شوه تر اطلسه

ګوساله که شي پرورې په د الله شي

په منزل برابر نه شي له فرسه

نور به لوم د هیڅ آشنا په خوله وانخلم

بې وفا یارانو مور کړم له هوسه

د ناکسو آشنایي بــه نو رونه کا

(۲۵۹) که څه لاس د صدیق رسي له دې پسه

څو دې نشته آشنایي هیڅ له نفسه

نور به کس وتاته نه وایم ناکسه

معرفت د خپل نفس د رښـخه نشته

معارف نه دي د حق په توس و ترسه

په گفتار ثاني خپل ځان دیا یز بد کړي

په کردار بې ډېر بتر تر سگ مگسه

خبردار په حقیقت هغه درته وایم

بې خبر هغه هري یه دروغه تـر بسه

ښکته پورته نظر وکړه یو څنگه بل څنگه

په دامیان کې گوره څه له پیش و پسه

تا باریکه جامه واغوسته په شپه ځې

لمن نه ژغوري هرگز له خارو خسه

د کامل ذکر صدیق بویه حاصل کا

(۲۶۰) چې آگاه شي له خپونو له هوسه

فراغت له بد وجود د جهان اوسه

نوراني صفا تر ماه تابان اوسه

تواضع ترخلقه پر ځای د عیسی کا
لکه نور و لا ړد لمر تر مکان او سه

د پیدا رو ستر گو شا ن ه آ ینې دی
پاك ویدن ته پاك نظرنگران ا و سه

دصد ف صافي دخوا ېگو هر آ شنا کا
په صفت دخپل آ شنا پا ك ز بان او سه

که طلب دې د راحت په خاطر گرځي
لېږ په بند لکه یوسف د کنعان اوسه

که انصاف خوارې له چاغخه همد ا دی
(۱۲۶) لـکه لعل کـا نې سم پـه میزان او سه

نظر کم شو، پیره سپینه، خوله کنډ اسه
له شوم خلاص د نفس له مکره، له و سواسه

ز ر د ستر گو تر ځنیلو له ما له لا ړ شو
بې خبر او ده غفلت کړ م له ا نفا سه

په گنا ه قا در ما نع له بدو نه شوم
خون قا تل کا چې بې تیغ ورشي تر لاسه

په هو س بدو ته ځم له نیکی تښتم
بد قسمت په هسې شان کړم بې هراسه

متې مې د پیر په بدی لا تر نیکی زیات وي
په بد ی امید د ښو کړم بې قیا سه

فکر د رست نن په بازار د عمل گل کړم
هر قماش را ته ښکاره تم بې اساسه
په ریاطاعت صدیق په ځان پوهیږم
(۲۶۲) د ځر بهت څو بهٔ جدا ده له اساسه
لا لدې ترقدم کړه هغه ،دا ، فلک په ما هه
دین د نیا ته شا کړه مبارکه دې غناشه
څو خو د نما وې لکه حباب په اوی دریاب کړې
مت کړه په چوگان دمحبت گوی (۱) فناشه
خواره د هستۍ په دریاب د رپکې څوته کړه
چاوې خالي لاس په پور ته کف د دریاشه
تل تو تې گویا او ستا (۲) په صافه آیینه کا
مهر په لب کېږ ده په لسان د زړه گویاشه
د ېر ظاهر نظر په حقیقت کې د پرغبا روي
د استر کې کړه پټې معنوي ستر کې بینا شه
گرد غبار د زړه په لوی کامل باندې صیقل کړه
پورته په فلک روشن ضمیر ید بیضا شه
ېر که د تجرید لکه عیسی په تن پیدا کړې
(۲۶۳) بیا هله صد یقه تر فلک پو رته والا شه

---

۱ ـ په اصل کې ( کهوي ) راغلی دی .
۲ ـ همدا سې لیکل شوی دی .

ته‌ښکلی یوسف یې تل په خپا دکنعان مه‌شه
تخت په مصرجوړدی د لته‌لوړ په زندان مه‌شه
تل خندا بهتره د گنجونو تر بخشش ده
خوتوا نوي برق شه، ولې ابر نیسان مه‌شه
ښه په رکاب ایښې د ښایست حسن بهارده
هودي گل په باغ شته هومره ته‌غونچه(۱)شان مه‌شه
خله یا راندوه د ښودنه هو په خپل ځان پردې
غم دحضور ښه دی د تېروخت په ارمان مه‌شه
درد ې په خندا ترابوتوی کړل وصدیق ته
(۲۶۳) ځار دې تر بخشش شم شکرداچې پښیمان مه‌شه
مخا مخ و هغه مخ ته د آشنا شه
آیینې ته د تصویرصورت نما شه
و آشنا ته د آشنا په ژبه وا یه
په خاموشه ژبه زړ ونکه گویا شه
که مقصود وله دې نیت درسودوي
په مدد د ا فتاده دلاس عصاشه
که په نیت دعا نیت د هکر خواب يې
له بوریانه خوښ په اقش د بوریا شه

---

۱- دا مصرع په اصل کې (... هومره غونچه په شان مه‌شه) لیکل شوی دی.

خپل مطلب له بله مه غواړه کده شه کري

خود به خود لکه غونچه کړه کشا ده

قوت به خپلو وینو کړه څولا یموت مې

مه د آرد و نان په طمع د آسیا شه

څو به سیوره د آسمان کرځې صدیقه

(۲۶۵) د هر چا سر و ت قطع د حیا شه

چې دیا رمینه مې نه کي له آخو شه

صبحدم مې ځله خوله راوړي تر گوشه

په شربت د مغان پیر سبخا له شوم

د ساقي سبو به دور نکړم له دو شه

نیکه وبد واړه دچا دلته ظاهر دي

ځني خدای کړه شبه د هرچا پرده پوشه

دکریم کرم په باب شته د عاصیانو

خدای دي نه کاخوان د هیچا بې سر پوښه

په صدیق ملامت هیځ دژ را مکړه

(۲۶۶) تل خروش کیږي دسوي زړه له جوشه

د بهار له ابره ز مکه ده گل پوښه

که په دا شوه دلا له سینه پر جوشه

د بهار لطف نسیم ترحده زیات شو

گل، بلبل همیشه نه وي هم آغوشه

دجهان حلاوت هيڅ نشته، خبر يم
دحيوان چشمه پناه شوه اوس له نوشه

د جرس ناره په هر لوري له اورو
د غفلت پنبه که لرې کړو له گوشه

په خاطر هبار مطلب خپل وي صديقه
(۲۶۷) دکونينو هسې گرد کا له کاه پوشه

لکه خضر د حيات په آب سيراب شه
گنج وسيم وزر که غواړې خودخراب شه

په نکته دخاموشي چې نه ځا يږي
په مقام پاندې دعقل وهير کتاب شه

څوك چې ځان پناه دځان ساتي مرد نه دی
دا پرده لرې پخوا د مرگه تر خواب شه

د هوا په ترك وښتيا هين دوياب شي
تا تهجا وې چې پر باد لكه حباب شه

د رحمت له ابره در په دريا اوري
برابر په خشك وتر اوره سحاب شه

د آخر عمر په كار خبردار نه يې
په حساب خبر پخوا ترخپل حساب شه

چې په حال دې څوك خبر نه شي صديقه !
(۲۶۸) د فنا په بحر ډوب شه و نايا ب شه

نهي و نه شا کړه د حق ا مر ته تسلیم شه

او ر ته نمرود پر یږده ، په ګلزار د ابر ا هیم شه

پو ر ته عمل د ير کا و نه لا په ز ر مه ز مکه

هر چې خاکساران دي هم هغو ته په تعظیم شه

تل سجده حاضر ته په حضور د هفت اند ام کړه

خان دخوان په شمار کړه په تسخیر د هفت ا قلیم شه

در ومي کاروانونه ، هر نفس دجرس غږدی

څوك وا یې و تاته چې د تلو په ځای مقیم شه

هیڅ په له حاضره څوك عیب نه کا صد یقه

(۲٦۹) مخ تمام په صدق په کعبه دابر ا هیم شه

چې پیا له يې د سا قي د لاس کړه نو شه

د دنیا خوښي يې کل کړ ه فرا مو شه

د سا قي د پیا لې هسې تأ ثير و ينم

چې په بوی يې خلقه شوله مدهو شه

نور په هیڅ با ندي و تنه دز ره له کا

چا چې و نیو ه د ابر ه تر آ غو شه

نه چې وارد خزان تیر شو، بهار راغی

د بلبلو آواز کښېنا ست له خر و شه

په هردم په ما خوږ جرس د تلو کا

څه عجب آواز ز ما را غي تر ګو شه

د دنیا باز او مې سر آر پا به و غوښت

خالي نه دی یوزمان له پوشا پو هه

چې يې ناسته په قالین ، شال يې په دوشو

د هغو شا لوله پر یواته له د و شه

چې گل اوی اوی غم په تارا دروې

(۲۷۰) سور به نه شي د صديق د خاطرجو هه

ته چې ما ته نصحیت وا یې و اعظه

واره ځان ته خدیعت (۱) وايې و اعظه

چې له یاره مې ته اروې بل لورته

دا وما و ته غلط و ایې و اعظه

په عوض به يې د یار د کوڅې و رکرم

که شادی د جنت وایې و اعظه

زه ملنگ د مسلې په دوهې ناست یم

څه خبره د دولت وايې و اعظه

کله کله چې صفت زما د یار کړې

وایم شکر د نعمت وايې و اعظه

چې د عشق په توره و مړي با ندې خوښ یم

په هغو چې ته رحمت وايې و اعظه

نن زما دراز خبرې - زه پو هیږم

ته په کلي ، په مهلت وايې و اعظه

---

(۱) - خدعه ، فریب .

ما به منع د ښه مخ له لیدنې له کړي

ورځ و شپه که نصیحت وایې واعظه

ته چې مې ، وني ، ساقي ستا یې صدیق ته

(۲۷۱) د اوښـل په بـرکت وایې واعظه

نا قرار زړونه قرار شوای دریغه دریغه

څه قرارېږي په دیدار شوای دریغه دریغه

هغه زړونه چې څمونو دي ایو لي

وښادیو ته وزګار شوای دریغه دریغه

په سوځته و بلبلا نو پوه څدایه

په هر لوري لاله زار شوای دریغه دریغه

چې دارو یې د هلور په د بدن کیږي

کشکي څه هغه بیمار شوای دریغه دریغه

که ګندون مې پس له مرګه د کفن شي

ستا دسپه زلفو په تار شوای دریغه دریغه

اوس یې هیڅ هرې د بدن راښکاره نه شو

راحضور د مرګ په وار شوای دریغه دریغه

چې زما په غم ښادي کا نن دي ها د من شو

نن څما زړه جهان خوار شوای دریغه دریغه

په هجران د خند ه رو یو ښو یا رانو

ګل ژ ر ا ز ما په زار هوای در یغه دریغه

چې صدیق بسې طلب کا ، له یې مو سی

(۲۷۲) و ر ښکا ر ه هغه د یو ا ر ښوای در یغه د ر یغه

خوشیر بن یې د آ شنا ا سم شر یفه

چې هیڅوك دې خالي نه دي له تعریفه

د وست اخلاص داخلاص منو په کار کیږي

د لبا س آ شنا یې تل وي له تکلیفه

هر یفان دهر یفانو قدردان دي

نیك له نیکه بد له بد خوا ره حر یفه

کل لفاق په الفاق ورله رجوع کا

دا لصاف جامه چې واغو ندي ظر یفه

بنه چې پاس ز ما په زره باندې رقم شو

د هغه یا ر نامه مې سمه تر الیفه (۱)

د رست جها ن یې له تعلیمه معلم شو

یو د لور ورا ندې پیشوا لرم خلیفه

محبت د آشنا غشي ناو کي شو ل

(۲۷۳) د صدیق سینه یې د ر سته کړه شګیفه (۲)

---

(۱) الیف — ا لف

۲ ـ شګیف ـ شګا ف

ته چې طمع د وفا کړې له فلکه

بېهوده طمع دې خه ده پرزړه کلکه

دا هرګز به دا جهان کې هوی نه دي

چې مزه د نبات خوارې له نمکه

د دنیا په مسخ کې هيڅوک قرار نشته

لکه ګوی په میدان و بشتې له پتکه

ته چې هسې پټ پناه له امره کړځې

د کتوطا قت دې نشته ها پور که

چه يې هسې دا اسرار ووېل آغا زکړل

(۲۷۳) خلاله هوه او س صدیق ته هکه پکه

هومره مینه چې په تاکا ندي بلبله

خه دخان به خوبی هم پوهېږي ګله !

ته چې تل هسې خندا کړې په چمن کې

زوبه و ژاړې د حسن خوبي خوله

بیا بسته دې پخول حسن خره له هې

ها رضي خوبي څوک نه اري ترتله

بیا بېری چې ورته ګټ کوي رندېږي

نه هغه ښېره په ستر ګو مسالید له

په دیدن یې هسې درست بېخوده لاړم

زړه مې هم را خخه پوور له کو ګله

په ارمان د هغه وخت یم که یاو و کړي
چې سې ستا زنه د سوب ځوندي ښکله

ته چې یار زما په زور بیا یې هجرانه !
ته د دي خبرې داد و کړه پخپله

زما نې په مرګه يې سوځنه که شه کړي
صدیق خپله خونبها کړه د ر ته پله (۲۷۵)

دیا د مین یرخه د غم سه شه قابله
انديښنه دخرخ له څرخه کړه عاقله

په ګردون اثر ژړا ګله زما کا
تخم نه کا زر غون زمکه نا قابله

د مین ترقد م لا اندې سرد یار دی
میوه نه پر یږي په شاخ ونه کا مله

په ګیړون زما دعشق جدايي لاړه
د هجران پو ښتنه څه کړې له واصله

مونې ستا صفا مین په صفا مخ کړم
خو شبو يې د ګل له ګله د ه ها مله

صدیق ستا مونې له ځانه بیخبر کړم
پوبخبر نه دی له موجه د ساحله (۱) (۲۷۶)

---

(۱) دا غزل تکرار را غلی دی .

(ې)

هر قدم چې ته په سيل د بها ر ړ دې

په بها ر به منتو نه په بار با ر ړ دې

يو په سله به ښا يست دچمن ي ېر شي

چې قدم ته په ورتله کې په تلوار وړدې

چې ترخه ويل وما ته کړې داشکر

دا ېر هم مې په خوږ زړه خوږه تلوار ړ دې

خدای دې تل د آه له غشي اما ن وکړه

چې په زړه دمظلو ما نو ته آزار وړدې

تردا بله نيکي نشته ما ته خدا يږ و

که سې سر لکه منصور په سر ددار وړدې

دژوندون اميد هيڅ مه کوه صد يقه

(۲۷۷) چې قدم په دخونخوارو په جوار ړ دې

په هرچا با ندې چې کړې چارې نا پسندې

چورې نه چې په تا و شي هغه هندې

ما په داستر گو ليد ل پکې پړا ته وو

هم هغو چې چاو ېل ته وېستې کندې

چې روزگا ر بې ويه وچه زمکه کړ ی

و فلك ورته د تل زمکه کړي پلندې

چې ئې جام دمېو دوونه شوله شوندو

دغو شونډې ئې وچې کړې له تندې

وا روخپل دورگردان کړ وا رئې تور شو

ساقي اوس پيالې دسارا رندې رندې (۱)

ساقي نن وا باندې داد دسوزيات کړه

خلقې دي پخپل دا ر کې سره گندې

دصديق دپارتر سرځا ر يرې سوزي

(۲۷۸) ځکه شه گنې گپاه خلق دسپندې (۲)

ليکوونه پهخاطر خو چې دجهان پردې

دارمان داځونه واړه پهخپل ځان پردې

خپل پردې هموته څو لرې په زړه کې

هومره پټې وخپل سر تهدتاوان پردې

د اميد ونه به ستا ها له بر وا خلي

سبکبار قدم که عين په خزان پردې

کهدې غمونه دي ته شا کړه ځوانمردي ده

په تجريد به قدم پورته تر آسمان پردې

په هيڅ ملک به ونښانه تر ې ښکاره نهشي

هر قدم چې د نيستۍ په بيا بان پرده ي

---

۱-(رندې رندې) د (اندې اندې) غو ندې لو ستل کيږي .

۲- (سونده سڅوا ندو)

سهل امر ترك له خاله و اېكار ه شو

چې ژوندون پرده وصال ته ، ته جانان پردي

بې منته در ، خوواږه د وزخ و يني

د منت لاس به په درخه د رضوان پردي

صاف نظر انفع له صافي آيينې و ړي

هغسې خله كوږ په ژ ي كې د كما ن پردي

خود ي خم گردن د اسخت نه هي صد پله

(۲۷۹) سر به كله په بالين پاس د سندان پردي

چې دا هسې ستر كې تو ر ې ته لري

ز ر بلا فتنې ور ې پو رې ته لـر ې

له پوې بلا ې خلاص په سل بلاشوم

ور پسې بلمبې سل نورې ته لـرې

څكه نمر ته هټ كتى له هې خفا شه

معذو ي ستر كې چې كورې ته لرې

ته په كله د ز ړه خور په ما پېر زو كړې

چې د خولې خبرې سپو رې ته لرې

ته ها له وما ته خبر كوره صد پلـه

(۲۸۰) دمعنى ستر كې كه نو رې ته لرې

چې د ې وويم په ستركو هرې چېرې

د جهان پادى همه هي را پر ستېرې

که ښادي دې په وصال کړم عیب څه دی
د هجران خواری دې هم دي په ما توري

د کوڅې په ګشت دې هومره خوشالي کړم
چې خوښی پرې د جنت کړم وا ړه هېرې

و مجنون ته ښایسته تر لیلا څوک دی
که هر څو شي په جهان کې ښکلې ډېرې

څوک تر یار ښایسته نه وینم زاهده!
ته د حورو ښایست څه وما ته شمېرې

د منصور په دود به دار ته ځې ما یده!
که دیدار په لاس مې نوش کړې باده چېرې

سلامت په صدیق هله کړه د لېره
(۲۸۱) ستاد زار قصې که چا ته کا برسېرې

چې په ښه فکر تدبیر کا اند یخبری
ښې خبرې ښه مزه کا تر شکرې

چې په قدر د خبر و خبر دار شوم
د خبرو د ی قیمت تر سر غاړې

د هوښیار د ناداں ژبه واړه یو وي
په ګفتار یې فرق څو شي و یله لرې

مېړني په مېړ نتوب سره یاد یږي
د نامرد و کله څوک وایي سندرې

واره عیب په دا خلقو کې هنر شو
خلقه شوه اوس په سترګو تت نظر ي
لوی په لوی همت لو یږي، کم کمېږي
دا زلبرخې څوکه کمې شوې څوکه سترې
که په قدر د خبر و خبر دار شي
(۲۸۲) دصدق دپیل په یاد کړي ئز دې لرې
تورې وروځې توربانه سترګې یې توري
د جهان الا بلا فتنې ورې یو رې
هر بانه یې د ترکانو د لاس څشي
په وهښته ارز رونو غوی ځي پور یاوري
سر تر پایه ننداره یې چې ځان جوړ کړي
ولې دوه سترګې دې لاد زړونو چوري
په هرځا بانديچې ورشي زره ترې یوسي
دهری اثر مثال دی ستا دسمورې
بس کړه دا چې اوس سې ستا دېدن پرې وکړ
بیا به له کړم څا له سترګې پورته نورې
چې په توره یې سقاو کړي کا وماته
د جهان خبرې اورم تلخې سوورې
دا به هم پوستا کرم، مهر په ماوی
چې دیدن په ما د سر په بیا پلو رې

ماهم په چې ستا همونو ته پېدا يم

هر ستم چې په ما خوار هي ته يې کوري

په وصال به د صديق خوشحالي شو وي

په هجران چې دزړه وينې ژاړي تورې (۲۸۳)

زړه مې مه شه يې له تا نه جانان چيرې

مه وه زړه که مې يې تا کاران چورې

څه فايده مې يې د يد نه ستا ارمان وي

تل په نه وي څه يوسف په کنعان چيري

ستر کو ری زړه مې کوم ستا په آرام دی

فراغت نه وي دچا په زندان چيرې

له دوړانه د ليکی امید خا مي ده

لاس به اوږد له کا علیم په احسان چېري

هو په غم کړي د دنیا په تله، هوښيار شه

معطل نه کا په تلو ار رهروان چېري

په چمن راتله دګل په تلو تلو ارکا

جد ا اشته د بهار ه خزا ن چېري

که ولوته بې قدم تیاري نه کړای

ګل په له راته هرګز په بوستان چيري

تور نفس چوري بې يادو د ياره نه کړي

چوري له آزره تور کړي مهمان چوري

(۲۸۴) د صديق په رضا کله تله د ياروي

تله په رأى نه کا د هيڅا آسمان چېري

د جها ن ا لا بلا تل سختې چا رې

بې پوهيږم واره عشق کا رادو خا رې

ځان دې وژاري پخوله چې ترې خلاص شي

چې ياري کا ندي له تاسره خو نخوا رې

که په تا پسې بې صبره شي زړه کړه

په ديدن پسې شوې ستړګي نا قراري

چې داغونه په زړه پردې دارواړې هم کړه

ته نا ترسه ترس هم کړه څه خوباري

خودبې ځا ى ده دار په سر لکه منصور شي

چې په راز بې خلقې شي خبـر دا رې

په مخ د پره ښا يسته بې لر بوګلو

په زړه (څه) سخته سنګينه لکه خا رې

لاعلاج په پسې ما هسې بيمار کړي

چې راپور ته کړي دادوه ستړګي بيماري

ستا په تله چې په ماني ځې راته شا کړي

د فراق اوښکي په مخ کړم لا رې لا رې

هر زمان چې تا پرې نه وينې ژړند پرې

(۲۸۵) په تحقيق چې د صديق نور الا بصا ر بې

ته چې هسې په ما نې څې را الله شا کړې
بیا دې څه دې په خاطر چې دا ادا کړې

په هیڅ ځای مې پوه زو نه دې په سینه خدا یږو
ستا د خیال بلا په ما که بې په ما کړې

که په تا پسې مجنون شوم ، عجب څه دی
ته و ما ته میني کښلي تر لیلی کړې

د بلبل د یا ره زر را څه نسیمه !
چې په باغ کې رنګار نګ ګلونه وا کړې

چې هم مې شته هم بهار ، ساقي محتاج یم
چې په کله څو پیالې پیا پې را کړې

تاویل بوسه په در کړم خوسر را کړه
کشکې که ته کله کله هم دغه خپله وینا کړې

په خاطر دې خبر نه یم ګوره څه دې
په لباس دژبې څه د پره بلا کړې

چې دنیا ز خبره وکړې خپل سین ته
دا بې واړه د ویشتلې زړه دوا کړې

رښتیا ګل د چمن واړه شګفته شي
چې په دې که خوله و یارو ته خندا کړې

ستا د تورو سترګو پوخ پرې تعون شو
(۲۸۶) دصد یق خونه په زر بیدې بیدیا کړې

بې طلبه که ور ته دچا په خوان کړي

قیمتي گوهر به پای پرې رایگان کړي

چې دې ځابښ واره د آز په کاڼي مات شي

مزه یاب به وا په هغه د آب و نان وکړي

په لباس د عاریت دون همتي ده

دځولېچې په دود چې لب په باد خندان کړي

څو د زړه وینې دې هسته هومره پرې قوت کړه

بار په ځان خله منت د بل احسان کړي

معنوي د ر یتیم غوا ره غواص هم

د دریاب له موجه څه اندوه دځان کړي

ځان چې اصل و ته سپاري پا سبا ني هوارې

ته د نوح په کشتۍ ناست غم د توفان کړي

څو هیبونه دخپل ځان د ره ښکاره نه شي

چهرې نه له آیینې نه روگردان کړي

عاقبت به د قمر په لید و دروسي

که جامه جوړه بدن ته د کتان کړي

په سبا به تیز تر برق دروسي صدیقه

چې د صبر تر پښو چا لاندې دامان کړي (۲۸۷)

څو چې غم د دې دنیا د هرو شور کړې

ډېر ستم هرګند په ځان باندې هر ګور کړې

کور دې عین علیین تر فلکه ور دی

ته پسو په ورانۍ مه دې کور کړې

شپه په خوب د رڼخه تېره په غفلت شي

رڼا ورځ تېره په شان د کرو کور کړې

ګذرګاه دې د خیا لو لو د زړه سر شو

لا دې پوکوز کړی نه وي بل پرې سور کړې

چې په خوب دې عمر ځي بې پروایي ده

خوب به کله د راحت په کور د ګور کړې

زورور سرکې منځلي دي په زمکه

ته به څو لکه رستم لافې د زور کړې

لاس په بدو درست ګنده ، له پونه وللی

همدمه عمل په ځان ته تور منګور کړې

پور بیار ته ور کول په نیستی ګران شي

ته بې څو تنګدستی ته لور په لور کړې

چې پودم دې بار د حق په ځان کې نه شو

چېرې نه وي چې دا ځان لایق داور کړې

همیشه دې پښتو سر ته تیار ږدي
سر دې خلاص له پوه نه عسل پرې تنه ور کړي

که کردار دې تر گفتار کم شو صد پته
دغه ستاویل به ته د خان پیغور کړي (۲۸۸)

چې جلوه په جلوه گاه را ته ښکاره کړي
را ته هیڅ د نورو ښکلیو ننداره کړي

په دیدن د سر ښیند ل مصلحت هیڅ دی
د نوکي په کار کې څه استخاره کړي

په جهان چې ته پیدا شوې دریغه سینې
د هر هوښیار په لیونیو په شماره کړي

لکه زه وم بې خبر ساقي له ځانه
کشکې مست سي هغه هوسره دوباره کړي

صوفي تل دست افشاني کا تېر له ځانه (۱)
مغني چې لاس په چنگه ود و تاره کړي

په چمن گذر په ورو بو په نسیمه
په تلوار به دغو نجې کمیس پاره کړي

ته چې دېره اشنایي کړې دادې زړه دی
چې خرید پرې د خولو اجاره کړي

---

۱- (د تېر له ځانه) په ځای (تري له ځانه) هم اوستل کېدای شي.

د لیلی د سینې نوم هله په ځان بوده

که مجنون غونډې پرې لوړه مناره کړې

عاقبت به ځان د دار سر کړې صدقه !

(۲۸۹) چې دراز و یل منصور غونډې ښکاره کړې

ته چې خیال په رنګینه ښکلیو جامو کړې

اور به پو ر ې په و ګړي د فتنو کړې

راته اوچې پوړ ته پورته کړې ــ وېر بېوم

یوه ورځ به ما په داتور و تیر وکړې

دا دې بیا فتنه په زړه را معلومیږي

چې و ما ته اړ ویل به خرخشو کړې

له ما زړه به دې و مرم بیا به وایې

چې چا نه و یل و ما ته خون بسو کړې

زه پښتون لا په پښتو ژبه کې ارشم

ته و ما و ته تر کې خبرې څو کړې

مخامخ را ته و لاړه یې تا وینم

څه شي ځان که له ما پټ په څو پردو کړې

ستا هم مخ آفتاب به شکل کړم که یې خدای کا

که مې پور ته د زلفو په رسو کړې

که د سر سپوږ ی مې نشته عیب څه دی

که له چا ما نې تحقیق د مزرو کړې

گوره زړه به ېږي دعاورې ، دواړه ستر گې

څه بلاته بې اوس توريږه رنجو کړې

(۲۹۰) ستاپه سر به بې پارساله کاصد پڅه

که هزار ځله خوله ستړې په تو بو کړې

داهمه جورو جفا ، ستم په ما کړې

چې اغيار سره د زړه مهر ، خندا کړې

سها جفا جور نژدې کړم و مردن ته

اوس دې زړه زما په مرگ دی دااد ا کړې

فکر هيڅ ترس دې لشته دی په زړه کې

هر چې زه پرې زهير پږم هغه لا کړې

په داهم هزار هزار شکر و کاږم

چې ته مخ په وړاندې څې ، نظر تر ما کړې

ترو فادې له جفا سره خوبې کړم

هرچې ته را باندې کړې واړه عطا کړې

رڼا ورځ را باندې ځکه توره شپه شوه

چې خورې دې په سپين مخ زلفې سيا کړې

را شه څه چې د مغان په ميخانه شو

شيخه اغه له د رياز هد وتقوی کړې

زه پياله واړه په طمع د ديدن څښم

ته داز هد د جنت په تمنا کړې

مخ به‌زر لکه مجنون کړي وصحراته
که دزړه په سترګو څېرهغه لیلا کړي
دا دزړه ښهر مې وا ړه ستا او اچه شو
چې را پورته دي دا دوه‌سترګي ښهلا کړي
دزړه حال دا هوسره ووایه صد یق ته
(۲۹۱) دیاری وعده دروغ که‌په رښتیا کړي
تورګیسو چې په سوون مخ با ندې افشان کړي
آشفته زړو نه یې لاخسته پریشان کړي
توري سترګې تور با نه تو ې بلا دي
په څنبل پرې زخمي واړه بېدلان کړي
چې یې تښتي له ستمه آهوغر ه ته
ما به ته له دې ظا لمه په‌امان کړي
په بوستان سرو حیران شي ستاو قد ته
سروقد چې په بوستان ته‌خراسان کړي
چې ښکاره سر توره مسته ښې له نازه
زندار چې وخپل بدن ته درست جهان کړي
په بار خود ې داخولې دي که له عکسه
په پرو ین طعن اوس څکه دآسمان کړي
د پری سوري اثر دا هو سره نه کـا
لکه ته یې په‌ماخوار په‌هرشان کړي

په غمزو په کرشمو یې معنی نه دي
چا وماته حورې یا دې درضوان کړې
کشکې خدای هغه ساعت کا چې صدیق ته
(۲۹۲) په خندا څرګندې شونډې، سور پېزوان کړې
زه خو لېونی یم که له ما سره یاري کړې
بویه چې د کنډو دپهور اوس تیاري کړې
دازیست وروز ګار به د دنیاوتا ته هیڅ شي
څارتر لیونتو به به زما ګل هوښیاري کړې
چا ویل وتاته ستا بلا واره په ما شه
بېه له ما عاجزه چې له ما به ویزاري کړې
تا ویل زما بوسه مرهم د هر زحمت ده
دریغه که یې را وما پخوا تر بیماري کړې
اوس خو ته پخلاپې ولې دریغه په ما نې کې
پیښه وما خوا رته دجهان واره خواري کړې
جار تر هغه وخت شم چې به کله په ما راشې
کله به ښکاره وربل وما ته تا تاري کړې (۱)
(۲۹۳) اوی دې چې نسیم دزلفو خور په هر دیار ګا
څکه یې خجل نافې دمشکو تا تاوي کړې

---

۱- مقطع نه لري.

خدایه ته چې ښایسته شکلي پیدا کړې
بیا يې ولې د فنا په باد فنا کړې

ستا پرې هیڅ پوره نیمګړې هرګز نه دې
نه پوهیږم چې په څه ته هغه دا کړې

ښایسته غوټۍ يې وخورولې په څمڅو
په ماهزه يې د تراب سره همتا کړې

چې ترګلو ښایسته نازک بدن وي
ته يې څه رنګ تورې خاورې د پیدا کړې

حیراني ستا په قدرت پورې را درومي
ته په هر څه کې چې کړې خپله رضا کړې

راشه سود را ته معلوم کړه چې خبر شم
چې په کوم توکي ته دا سودو سودا کړې

تن او روح د هر یوه جدا جدا وي
ته يې څه رنګ بیا په مینه کې یکتا کړې

چې په مینه کې ځای ونیسي یو له بله
ته هغه مین په څه ولې جدا کړې

داغ په زړونو باندې مه پرده ترحم کړه
یو په داسې درد مینو زړو دوا کړې

ته پخپله ځان ته وایې چې داد ګرېم
دا بیدا ده چارې څه لره روا کړې

که حساب له نیکه و بد څوارېږي له بده

ته به هم د نیکه و بد حساب وربیا کړي

داد به و څوارېږي له تا چې يې دادخواه وي

ته به بیا پوره د وارو تمنا کړي

ما صدیق پرې هادي څوک نکړه پیغمه

(۲۹۳) چې مې خدای ستر کې په داد اوا بینا کړي

چې به دا دولت حشم عشرت د کلی کړي

راتـه واېـه پادشاهي به تا بـه کی کـړي

عاقبت به په مرکي شي توري خاورې

که په کوتې سلیمان څوندې غمی کړي

دحیوان او به که نوش کړې لکه خضر

خو آخر به بیا د ځان میلمه مرګی کړي

چې دې غم په بل بوه دی ته خوشي کړي

څله غم کله د ځان کله اردی کړي

څو به طمع د هر چا تر پښو پسر پسو ځې

ته د نفس اله پښو څه دوه موری ووی کړي

په طلب کې د دنیا خس او هوا شوي

د دنیا محبت څو مره لیونی کـړي

فراغت که دې رضا ده چې حاصل شي

بو په لن د نوې لارې منزل طی کړي

بیا که هر څو ارمان کړې فایده به نه وي
چې دنن په توره چار سبا هی هی کړې

د وندانو په مذهب دا کافري ده
چې زړې ته آزار د لارې یو مېږی کړې

په هر څه کې هغه رنګ دی چې لیده شي
که د زړه په سترګو ګوره واړه ګل هی کړې

د هجران له درد دو که ویر فریاد د کا
که د زړه په خوږ و خوږ د ګل شی (۱) کړې

زه به تا هسې له مینې په لیلا بشو لم
که مجنون غوندې بې عقل په سترګو مې کړې

چې صدیق پرې ګرهستي تر لیمستی ګورځي
(۲۹۵) ساقي ! کله به لا داد د هغه سی کړې

هو نظر په ښکلي مخ چې د دلبر کړې
کم به بې حساب له زړو په محشر کړې

په تجرید حاجي کعبې ته شبګیر بیا ئې
ته جدا نه ئې له ځانه هم سفر کړې

پښېماني به ورځ غافل د قیامت کا
ته په خود غم په ورځ خوږې اختر کړې

---

۱ـ همداسې لوګل شوی دی .

د منت سیوری په سرد هما ی مه هه

تری به آب چې په منت نن د کوثر کړي

سجده بت وته کوه مخ کړه کعبې ته

په زنګار به بې تمام د تیغ جوهر کړي

عبادت وته د رستجو رنه بې صدیقه !

(۲۹۶) د خبر لــه هستې خپله بېخبر کړي

دا مېد ونې مې څو نهل په لاس کړي

په ارمې زر په لاس وارهد یاس کړي

دژوندون ګذر په کوروبنهیا دمرګهدی

تله به څوله همیشه تر بامه پاس کړي

عمر دېر د خضر دېر هرګوره لږ دی

بېهوده په لږژوندون چې دېرو سواس کړي

دزمري هیبت دې مل شي په ځنګله کې

له مرګې په لغري ناست کله هراس کړي

ګړندی عمر تر برقه تیره درومي

که نظر څهخو په تله د خپل انفاس کړي

په جامه د عاریت نادان خوښي کا

هوښیار خوښې جامې کله دلباس کړي

په دولت کې صدیق غم همیشه و یې

(۲۹۷) ځکهخدای ورپېښې ورځې دافلاس کړي

گله زړه واخله بد گلهٔ بې به کړي
راتهٔ وایه هٔ ماتې مهر به هه کړي
به خندا دې دا ثواب دی را ته کړه بې
لکه وږی به هه موړ ، تږی اوبه کړي
گو ته ورله وزله کړې وابې خوږه ،
کشکې ته زما دزنې خوند ترخوله کړي
بد خشان د لعلو قدر ورك به دا شو
به خندا چې را ښکاره هٔ شونډو سره کړي
غم زما به برخه خدای کړ چې مین شوم
ته د لبره خوشحالي کړه ، غم به خه کړي
به اثو کې به هٔ دې پټ سا تم له خلقه
خیلی مینې را ته هوار ه تور لیمه کړي
تاخوزه یار ته خس کړی وم هما زه !
خدای ترما نه ته پخواشوې سوشوېته کړي (۱)
تا په هه دېکلیو عمر کم کړ خدایه !
که د خضر عمر ورگړي به به و کړي
ها هد الو سره خوبش هم به زلد ان کې
گله بې ښکلیو پادشاهي کړم ومې مه کړي

---

(۱) به اصل کې همدغسې لیکل شوې دی . مطلب یې (خ +س) یعنې (خس) د غچې به حساب (شوې سوه شوېته) کیږي .

چې په سپک نظر مې یاو له گوري خدایه!

ته هغه کسان په تورلیمه رانده کړې

په تش آه به مې جهان سره کنډو دهي

(۲۹۸) چوري نه په خه آزار دصدیق زړه کړې

په خندا چې دوا ره لبه هکر بار کړې

واهکاره په خه صدف د وهوار کړې

چې گذردې په چمن په ماه و سال هي

هغه باغ تور په کلو نوکر انبار کړې

چې دې اشته عشق دچا په زړه ، زړه له دی

په بوره کې نشته ځای چې اې تکرار کړې

سترگې ستا ، په تا کاته کړم تاهوې گورم

ته کاته په آینه د خپل دیدار کړې

صدیق ډېر راضي له تا په دا یم سینې !

(۲۹۹) چې په دار مې دمنصور په سردستار کړې

په داهسې لونها رساقي په هغه کړې

چې په خم کې مې باقي شته مهر نه کړې

باري اوس اهل کرم په جهان نشته

ته چې لاس کوتاه لدوې یو په وره کړې(۱)

په دلبا به قیامت په ما ازول هي

چې غماز و ته خندا په د که خوله کړې

---

(۱) د (په وره) په ځای (بوره) لیکل شوی دی.

که زما په مرګ دې زړه دی باوري بویه

چې مدام زما په قصد د رقیب زړه کړي

بیا به کله مخ څرګند کړې، حیرانېږم

چې دلبر ساعت وعده دې ډېر لاوغه کړي

ته مې څه وایې وماته څخود پوهېږم

په فراق مې به د زړه وینې اوبه کړي

(۳۰۰) د دوران څښو لوډېر په زړه زهر کړم

خدایه! کله به خوشحال د صدیق زړه کړې

چې مې سترګې د یقین ورته سبحان کړي

څرخشي مې را څرګندي د دوران کړي

د نوې فتنې انجام د سلوسر وي

په ګردش یې را برسېره دا آسمان کړي

په شماره به درمانده شم که یې شمېرم

کله چا په حساب خاورې د دښتان کړي

په یقین ګردې دوران فتنې تېرې کا

که په زړه تصور څاڅکي د باران کړي

زړه به مې په دنیا روغ نه وي همېشه‌ري

ته په څه لکه غوټه به باد خندان کړي

که هرڅو دې له دورانه کام حاصل شي

بیا به زار لکه بلبله له خزان کړي

خو خواږې ګلمو نه درومي فنا کېږي

ته به څه د زړه خوښي په دا بوستان کړې

له خندا سره ژړاشته که پـو هېږې

په وصال یې ورځې پټې د هجران کړې

غم، ښادي په دواړه مخ درته ځرګند کا

که ته سر ښکته د فکر په ګـرېوان کړې

ته به څه مانه له خپلو کړې صدقه!

(۳۰۱) وروڼو شنډې په یوسف څو په کنعان کړې

چې خورې دې د شمشاد په شانه بیا کړې

ستا پـرېشانو زلفو لا خو-ی پیدا کړې

په ورو وروېې مشاطه مېږې په لاس کې

د خسته زړو نـوکـره څو تړې مې وا کړې

د سنبلو آب و تاب داهومره نه و

چې د زلفو د سنبل خبرې چا کړې

ارګس ځکه سرنګون ګوري تراوسه

چې ور یو رته دې دا دوه سترګې شهلا کړې

ځکه یار ته کا ته غټ دعاشق ګران شي

خدای چې دوا ړه سترګې دکې په حیا کړې

د عمل جزا دې خدای در کا غمازه!

چې و یار ته مې خندنه پس شا کړې

چې صدیق دې په مانې ترمرګه بتر کړم

(۳۰۲) یاره خوا دې سره نه د ه مانې لا کړې

هم هغه چې ته په داحسن مشهور کړې

بیا یې پاس زما دزړه په سر مسطور کړې

چې په هر ځیر مې پرې ځیر کړه غوسترګو

تر یوسف یې ښکلی لارا ته منظور کړې

چې هغې یو زمان نه وینم اور نه وینم

په کاته کې خدای زما دسترګو نور کړې

کله غم کله ښادي وي چې آشنا شي

غم ، ښادي ، آشنا یې سره دستور کړې

لټ په لټ و بله اورم نه تیرېږي

دهجران شپې هرګوره خدای ضرور کړې

چې یودم له ما جدا شي ، که ګلشن وي

سره ګلونه یې سکروټه د تنور کړې

واصلا او خځه غم د هجرت نشته

دفراق ور ځې یې بر خه دمهجور کړې

نورځه هيڅ وما ته مه ستا به زاهده!

بې دلبره، صفت څه دحور، قصور کړې

په ژوندون به بې نم ورکه نه هې بې مرګه

(۳۰۳) د صديق ستړګې په غم مينې نا سور کړې

څه ناځا په بخت مدد شو چې يې را کړې

په پالنګه راسره ناست مهر، خندا کړې

په ورو ورود خاطر حال وا يې وما ته

خپل مطلب راته عيان په بنه ادا کړې

په قلقل د صراحۍ مستان بها دي کا

مهجور انو لکه شمع تل ژړا کړې

په دوران د لاله لبو ګلرخانـو

ساقي! جامه به په دست شهر مينا کړې

را شه څه چې د مغان پـه ميخانه شـو

شيخه! څه لافې دزهد و د تقوی کړې

چې ما نې را سره کړې رقيب خندا کا

په خندا يې په خوله خاوره د بيد يا کړې

په وصال بې هيڅ شاکر نه وې صديقه

(۳۰۴) بنه چې اوس بې په هجران ديره ژړا کړې

بيا دي ستړګې په رنجو کړې، زلفې غوړې

خلقې دې کړې په ځان پسې په کړې

د طلسم هنر منند په ښهر ګـلې شـو
لوی هلك و رېسې دروهې شخړې شخړې

چې د زړه په رازمې نه پوهېږې څه کړم
په خصلت کې مهند ی کړې خدای د خوړې

دانا رو سرې دانې پېژندی نه شې .
خدای وتاته کړې انار کړ کښې ز ړې

سوو رویل خوراته کړه د خدای د پاره
که دې نه دې را پېر زو خبرې غوړې

ګرد غبار لړو آسمان نیولی نه دی
(۳۰۵) دا همه دې د صد یق د آه لوخړې

د ژوندون اوبه په لاس د خضر چاکړې
هم هغه نصیب ز مـا ئـن د فنا کړې

زه اول سوی د عشق وم چې معما ر مې
شنې ایرې بیا د آسمان په ساخت لګیا کړې

نور په پر، ودګران د زړه خوښې کا (۱)
ما په ځا ن پورې ننې دلوی عنقا کړې

چې منصور خوندی مې بیا یې اوس ودارته
مینې ! دا فتنې هم ستاوې، تا بـر پا کړې

---

۱ـ همداسې لیکل شوی دی.

دا هورت به تا هر گز مو ند لی له و

د مجنو ن مینې هم ته لیلا ! ر سوا کړې

د هلك تر نظر کـا نې گـو هر یو وي

له و فا به دد و ران څه تمنا کړې

عاقبت به مري په مرگ ، څه شو صدیق

(۳۰۶) که او به نوشې لن خضر د بقا کړې

ته چې دوا ره ستر گې تور ې په رنجو کړې

خود به لا س پورې دزړو او په ولجو کړې

ته پخپله د اغ په زړه پردې دو کړي

بیا یې لاښه به د بدن دارو د زړو کړې

تامې یار لیدلی نه د ی هیڅه ! محکه

د یر صفت را ته د و ر د و ظیفو کړې

که یې وو ینې پوځل چیرې په ستر گو

نو ر به لاندې سد سا له زهد تر پښو کړې

له هغو خبر و در ست جها ن خبر شو

چې پرونه ې په خلوت ما ته په ورو کړې

د بدخواه سینه به یخ شي ، نور څه نه وي

لږ تر څه و یل به ته ما ته پسو کړې

څوك محتاج د یوه زا ن ار ې فلکـه !

په چا داد په خروار و نو به رڼو کړې

چې د زړه رضا دې وشي و يارى ته
اشارت را ته په سترګو په ښو کړې

زړه له تا دزړګي سترګې وړي شهباز ه!
ځکه ګشت پسې د غرو نو په درو کړې

تاوېخوله به په خندا په ښکنځل درکړم
وايم دواړه لبهدي،څه په ما پيروز کړې

که ته ښه انهم پرې کړې وايم صدقه
(۳۰۷) تر فارسى به شعر لا ښه په پښتو کړې

ته به څه هوس دشکوه له زما نې کړې
د سرکش آس به نيول په تمزانې کړې

د قسمت رسد و تا ته خپل عمل کا
بيهوده ګله ما نه له زمانې کړې

چې ګلاو نه د چمن په باد خزان وړي
ته تړل د زړه په خس د آشنانې کړې

سود د خضر د ژوندن غم د يا را نو
ابژوندون ښکاره شو تا ته نشانې کړې

پټه تل دانه په دام هوښيار صياد کړدي
څه په طمع ته له دوره د دانې کړې

د مطلب خاوره موندله په دو ديار شي
ته طلب څه د کعبې په آستانې کړې

دعارف غبار هر گز په خاطر اشته

نظر صاف شو په صفاهیشه خالي کړي

خپل ویل نصیحت ځان ته کړه صد یقه

(۳۰۸) مزه کومه چې وده ته افسا نې کړي

چې سبادي په بارخوز لفېنې چمن کړي

په هر چمن دي خوخجل اا في دچمن کړي

په سوړن مخ دې خوبې یووره له آ فتابه

دجبین پهخو لوطعن په پروین کړي

په شعله کې تر آ فتا به لا تیري کا

چې تیکه جوره په لوح د جبین کړي

شا پري ی چې در ته گو ري حیرا نیږي

ته یو څه آ فتاب پیدا خدا ی په ز مین کړي

د ظفر سمند دې بیا تیار و لا ړ دی

گوره بیا به تاخت دچا په دلودین کړي

په څوته بې یکبا ر ه را ښځه یو سي

خدا ی د زړه په و ړ لوستاستر گې شا هین کړي

دا به زه سا تم په زړه کې تر قیامته

چې د را ز و یل وما ته ته هیرین کړي

که بل چا ته دې زړه نرم شي تر موم

خدای وماو ته پوشه ر نګ دل سنګين کړې

چې دزړه اخلاص دې نشته څه عجب دی

(۳۰۹) په لباس کې دصديق دزړه تسکين کړې

په دولت که د دنيا په پورته خيږې

عاقبت به لکه پاڼ د شګو ريږې

د فلک امداد مدام دی له طلبه

په قوت د عا ريت څله نازيږې

دشيرين عمر له قدره خبردار شه

لکه مياشت شې وره، لويه بيا کميږې

دخپل نس هوادې څوبله راکاږي

په حساب کې لکه پله پسې غزيږې

دم په دم دشيرين عمر مايه درومي

له توحيده ځان غروې په بله څليږې

خواب وخيال دې د دنيا په خاطر نهال شو

په هر لوري سرګردان شوې پسې لويږې

لويه چار دقناعت نيسه په لاس کې

داوړې چارې څو ديرې کړې وريږې

نصیحت د دانا هغه مصلحت دی

د کامل کلام دوا خورهچې نه پېړي (۱)

فراغت په قناعت او سه صد یقه !

(۳۱۰) مناجات دحاجتواچې دروسې دربړي

چې ثابت په شریعت شي

نور سالك د حقیقت شي

د توحید ډیوه کړه بله

چې روان په طریقت شي

بې پرواهه به رفتن کړي

چې د پېر په معرفت شي

د تللوین ذکر حاصل کړه

چې مشغول په محبت شي

د زړه مراد به دې حاصل شي

که له نفسه په شدت شي

چې غمو نو وته شا کړي

له بنیاد یو په عزلت شي

---

۱- (پېړې = پوهېږي) میرزاخان انصاري هم په دغه فورم راوړی:

په بزرگانو بانديې ولې اهانت کړې- مکړه لار به دې شي بند هو به پوهېږي

(دیوان ۲۳۱ مخ).

په هوښيارو به خندا کړي
چې د مستو په صحبت شي
په هر څه کې به خوښي کړي
که شاکر يې په نعمت شي
نو ربې غمه يې صد يقه
(۳۱۱) چې صبور په مصيبت شي
هسې چارې سکړه چې په نورو باندې گرم شي
بل که په ځان گرم کړې خه په دا به له چا کم شې
صاف لکه او به شه چې هر خوك د رسره ښه وي
تار په تار د هر چا په اعضا به لکه نم
يو ځله گواهان چې ته د نيکې په ځان تور کړي
درست عمر که بد کړي په نيکۍ به تور رقم شي
ډير گران بها دی شيرين عمر دم په دم ځي
هومره سپود وکړه چې خبر په دا خپل دم شي
ورا ندې لو په لاره ده څو خوني لري دي
وربه شي ترڅا يه که روان له ده محکم شي (۱)
تل تو به ژړا کړه په زاری په محنت او سه
خلاص به شي له غمه که په خپل گناه ندم شي

---

۱ - همدا مې ليکل شوی دی .

بې خدمته نه ده مخد ومې هیڅا سو ند لـې
هلته به مخد دم شې که ته هم دچا خدم شې
بوی چې دې نسیم په هر سواو ړي په ملکو نه
څه خو که بید ا ر لـکه غو نچه په صبحد م شې
هورته بیا هاله خدا اهو س که وه صدیقه
(۳۱۲) نورې چا وې څه دي که لایق بې د کرم شې
لکه ستا دي شا یستـه کتا رې ستـر گـې
هسې نشته په جها ن ا و څا ر ې ستر گې
په کا ته دې سحر کا ر کا ندي په زړه نو
ستا په د و ر د چا نه دي جا ر ې ستر گې
لکه مخ په آ يينه و ا ته ښکا ر ه شـې
چې مې و کا ند ي و ز ړه ته لا ړ ې ستر گې
همیشه و ینې د ز ړه خور ي څکه سر و ې
ستا په درد نه د ي چا خو لخوا رې ستر گې
چې مې يار ته خو کړ په خو اروستر گو گـور ي
د هغو سې یو خدای کا خـوا رې ستر گـې
زه خو نخو ار کړم دغوستا ستر گو سو گند دي
نو ر ته څه لـر ه و ما ته شما ر ې ستر گـې
همیشه له تا دیدن غوا ړي صدیقه
(۳۱۳) څو دې نه دي د کتوقرارې ستر گې

# ویی پانګه ( قاموسی برخه )

## دغزلونو په ترتیب

استوګه : (۲۲۱) (استوګنه ، سکونت) .

بلبېل ، بلېښېل (۲۸۰) (تاوول ، پېچل ، نغښتل ) د (اېښودل = ږدل ، کښېښل = کاږل) په شان یې ماضي اساس ( بلېښل ) اوحال اومستقبل اساس (بلېږدل) دی چې دویم اساس قاموسونو اخیستی دی . لومړی اساس یې دپښتو په کلاسیکو اثارو کې زیات استعمال شوی دی لکه:

که هر څو مې لکه ورکی د پر هیز په روني بلېښي

تېښه زړه را څخه تر کوعا قبت ځان ته را کېښي

(حمید)

بدخواه دې په قصد کړي دو خوشحاله ! ملا محکمه

څه ویره څه اندوه کړې ته هم ورو نه یې چا بلبېل

(خوشحال )

بلها ر: (۲٥) (قربان‌شوی شنډل شوی) (بلهاری) (۲۱) (قرباني) ظفر اللغات (بلها بدل) اوهندي قاموسونو په همدغه معنا اخيستی دی اود پښتو په لرغوني ادب کې زيات راغلی دی لکه:

چې ديار دراتلو زيری په ما وکا

تر هغه سري به زه شم بلهاری

(خوشحال)

نه يې څرخ تنها له سره څارېده

فلك لا تر څا ر يده بلها ر يده

(نيرنگ عشق ۱٥۳ مخ)

جارشم تر صديقه بلهار شم تر عمره

قربان شم تر عثمانه، تر حضرت علی‌نه هم

(فتاوای احمد شاهي)

پتك: (۲۷۳) (۱-دډی وروکی لرگی، چوگان ۲-دايندې اومچنوغې کاسه) قاموسونو اخيستی دی.

پسو: (۲۸-۱۶۳-۲۸۸-۲۹۰-۳۰۷) (هسې، هسې‌شان) په لرغوني ادب کې زيات استعمال شوی دی.

پهور: (۲۹۳) (دملنگانو مخصوصه لکړه) د (پهور، پهوری، سوهړه) په نورم هم راغلې ده لکه:

يا خوسکړه ليوني سره يا وي
يا د کند د پهوړی کړه تيا ري
(خو شحال)

کچکول به و اخلم پسې به وځم
پهوړه په لاس ،دوهی مې کو رهو
(خواجه بنگښی)

ښکاره که مخ ترحجاب خرگند کا
کند، پهوړه به پسې ډير لنگه کا
(سعيد)

کند کچکول پهړه يې و اخيسته گـد اشو
سرگشته يې په هر د ر ، په هر ديار کړ
(مصری خان گگيا نی)

پېښل: (۱۹۶، ۲۲۲-۲۵۶) (زغم ارل، تحمل کول، زغمل) قاموسونو
اخيستی دی په زاړه ادب کې زيات راغلی لکه:
زه په و صل کې هجرا ن هسې پېښم
لکه څوک چې خالي لاس وي په بازارکښې
(رحمان بابا)

دوزخي غو ندې په هجر کې د ښکليو
تريو دغذا به پيښم بـل عذ اب سخت
(حميد)

ترو: (ام ١٦-٢٠٧) (نو) قاموسونو د (ترې، د دې له پاره، ترهغه) په معنا اخيستى.

تلاتوب: (١٠٣) (نا قراري، نا ارامي) قاموسونو اخيستى خوشحال دا سې راوړې:

په درسته ورځ چې ته تلاتوب کړې
د دنيا ورځې په څه اشوب کړې
(غزلونه)

تومن: (٩٥) (قبيله، طايفه، عشيره) ظفر اللغات د (سيمه) په معنا اخيستى.
د پښتو په لرغوني ادب کې زيات راغلى دى:

که د کلي داو لس، د تومن بزرگ وي
و سيلمه و تـه کتر مکر ر چرگ وي
(خوشحال - سوا تنامه)

توري ستر کې دي داګوان تومن يې لوټ کړ
له دې هسې جوره بس کړه قـزا قـا ن نور
(اشرف هجري)

نا ديده توين به څر نګه پسې ځوارم
لکه يخ چې په تاوويلي د آفتاب شو
(ميرزا خان)

دلبران د جهان واړه جفا کـر دي
ولې يار غوندې يو نشته په تومن کې
(اشرف هجري)

تېزانه: (۳۰۸) (سوېړ يدنه، ړکوب) په لرغوني ادب کې د (تېڅل، تېزل، تېځ، تېزنه) په نورم او (نېځوني) د (ړکوب، د سوړ لېشا روي) په معنا زيات راغلي دي لکه:

زه خوشحال چې په زمريو بادې تېځ کړم

تا ته څرنګه ګيدړ هوم تر وسې کسه

(خوشحال)

تنلور: (۲۸۸) د (انبار) په معنا قاموسونو اخيستي دي.

څمڅمه: (۲۹۳) څنځه) چې (شوېله) هم ورته ويل کېږي. په ځينو سيمو لکه په (باجوړ) کې د (ن) په ځای په (م) ويل کېږي.

خورمه: (س، ز، خج، ف) (۲۳۱) (پرخه، شبنم، نری باران) د باجوړ په سيمه کې په همدغه معنا ويل کېږي.

غرګی: (۱۱۶) (کازی، غونډارې) په دغه معنا په مومند واو باجوړ کې ژوندی کلمه ده. په ځينو لهجو کې (لکه ځاځي ميدان) (غار) هم ورته وايي.

لاوغه: (۲۰۰، ۳۰۰) (ځنډ، درنګ، معطل) د پښتو په زاړه ادب کې زيات راغلی او قاموسونو اخستی.

او چنې: (۱۳۲) (اوچينه د لوښو د کنګال اوبه، هغه اوبه چې اوښې پرې کنګال شوي وي).

لهر: (۱۳۷-۱۸۸) (څپه، موج) د پښتو په زړو اثارو کې زيات راغلي دي لکه:

چې بهار شو د ښا دی زر پرې و خوت دغم لهر
(میرزاخان انصاري)

خوار خوشحال یې لکه خس هسې لاهو کړ
چې د عشق سیلاب را و خوت لهر لهر
(خوشحال)

چې سې اوښکې لهر لهر وران مې شو د خاطر ښهر
(عبدالقادر ختک)

ورځ پرې تېره په داشان شوه راغله شپه
د غم لهر یې سخ شون کړ په چپه
(د سکندر لیلی او مجنون)

لیندی : (خج په لوسړی هجا) (۱۷۰) (رسا و یشتونکی، تیرانداز، د لیندې ولیشتلو ماهر).

په پخوانیو ادبیا تو کې زښته ډېره راغلې لکه :
د گوزار له پاره لینده پې په څو ناست و ې
د قطرې په حرص گرزې پسې هارې
(خوشحال)

څم سو ری سوری خراب خاطر دغم له غیشو
لیند یو د هجران راته وهلی دی زنگون
(ملا نعیم)

عاشق هدف دی خوبان دي لیندې

ور بانډې کاندي چارې ناپسندې

(پیر محمد کاکړ)

سرسته: (۱۷۱) (لټون، طلب) په لرغوني ادب کې غالباً په همدغه معنا را غلې ده. لږ د (کومک) په معنا استعمال شوې ده.

مښود: (۳۱۲) (زیار، کوشش، سعی، هاند) قاموسونو په دغه معنا اخستی او په زاړه ادب کې زیات راغلی دی.

منډیل: (۱۳۶) (لویه پګړی) پښتو قاموس (منډیل) او ظفر اللغات هم (منډیل) او هم (منډیل) اخیستی. د خوشحال په اشعارو کې د (منډیل) په فورم را غلی لکه:

چا د سر له پاسه سور منډیل تړلی

ځینې هسې خوار حیران ګرزي سرتوري

(خوشحال)

نغوتل: (۲۰۰) نغوړل (۲۱۶) (۱- غوړنیول، منل، ۲- تلقین کول) د (ختل = خیژل، کوتل = کوږل) په شان د ماضي فعل اساس یې (کوتل) او د حال او مستقبل اساس یې (کوږل) دی.

په پښتو لرغوني ادب کې زښت ډیر راغلی دی.

ننګې: (۱۶۶) (بې صرفې) غالباً تکرار یې خوشحال داسې راوړې:

دخاطر وینه سې خوري په ننګې ننګې

له ګناهه ویره نه کاندي معصوم دی

(غزلیات)

وتنه : (۱۷۱ – ۲۷۰) (ږروا، رهبت، توجه) په پخوانیو ادبیاتو کې ډېره راغلې لکه :

د دنیا په مال مې هیڅ نشته وتنه

راشه وګوره دا مال و دا منال
(خوشحال – قصیدې)

زه که پوهېدای چې دې په ما نشته وتنه

نه به وم په تا پسې وتلی له وطنه
(علیخان)

مقتضی د خپل خاطر کا په هر دم کې

د خوبانو په هیچا نه زده وتنه
(نجیب)

ویل : (۱۳۲) (۱– تازه، ۲– غوړېدلي، خپور) قاموسونو (ویال) د (تازه) په معنا اخیستی دعبدالقادر په دیوان کې هم د (ویال) په فورم راغلی :

تل بې وچولی د میاشتې خو ندې و یال وي

دوست دښمن بې له دیداره کامیاب وي

هزاره : (۲۰۵) (سورګل، سورګلی) چې په دري ورته (ګل عروسک) وایې .

د پښتو د بیدل په دیوان کې ورنه د (داو دی ګل، ششتې ګل) معنا لیکل شوې ده خو هغه یو باغی ګل دی او دا یو دښتي .
د پښتو په پخوانی ادب کې زښت ډېر راغلی دی لکه :

باقي گل په باغ دد هرسونده نه شي
ځکه تل په او ښو تروي د هزار مخ
( اشرف هجري )

هزاره هزار پاره شو له افسوسه
دریدي څو یسيږي وریت کړ په داغل زړه
(عليخان)

هزاره شو په زړ ځایه ترسې ترسې
د لاله سینه ملا له داغدار شوه
(بیدل)

هسې جوش د هزاره په هرلورو ینم
ورسره سره دشقا یقـو د گلنا و
(شیدا)

که پاره پاره زما د زړه په شان وي
تسلی واړه د گل په هزاره کړم
(عبدالقادر)

څونچه وار به پیراهن د صبر واکړم
که نصیب مې شي دیدن د گل هزار و
( قنبر علی )

هره ورځ به دخوگر په وینو سور کا
نوبهار که هسې دور شي له هزاره
( اشرف هجري )
( پای )

# د یادونې وړ خاص نومونه

# سمون لیک

ګران لوستونکي به د کتاب له لوستلو نه مخکې دغه تېروتنې سمې کړي :

| شمیر | ناسم | سم | مخ | کرښه |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | طلای | طلا یي | ج | ۴ |
| ۲ | ید بیضا | ید بیضا | ك | ۲ |
| ۳ | ۹۹ | ۹۷ | ل | ۱۷ |
| ۴ | انشحاب | انتخاب | ل | ۱۸ |
| ۵ | ز | زه | ۴ | ۸ |
| ٦ | بنا امید | نا امید | ۱۲ | ۳ |
| ۷ | ماني | ماني | ۲٦ | ۷ |
| ۸ | رهبرر | رهبر | ۳۰ | ۲ |

(لومړی)

| کرښه | مخ | سم | ناسم | شمېر |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | ۳۳ | پېلتون | پېلتو | ۹ |
| ۵ | ۳۵ | سهر | سهن | ۱۰ |
| ۵ | ۳۵ | گلشن | گلش | ۱۱ |
| ۳ | ۴۱ | سپوری | سپوی | ۱۲ |
| ۱۵ | ۴۲ | ۵۲ | ۵۳ | ۱۳ |
| ۱۵ | ۴۵ | هغه | هغه | ۱۴ |
| ۱۲ | ۴۷ | ستمگار | ستمکار | ۱۵ |
| ۱۷ | ۴۷ | عندلیب | عندلیت | ۱۶ |
| ۱۵ | ۴۸ | پېرون | پېرن | ۱۷ |
| ۱۴ | ۵۸ | بیمار | بیما | ۱۸ |
| ۹ | ۶۱ | پرتوت | پرتوب | ۱۹ |
| ۴ | ۶۲ | محشر | محثر | ۲۰ |
| ۱۳ | ۶۴ | دخپل | دخیل | ۲۱ |
| ۱۰ | ۶۸ | دزړه | وزړه | ۲۲ |
| ۹ | ۷۱ | عذاب | هذاب | ۲۳ |
| ۲ | ۷۲ | جام | جا | ۲۴ |
| ۹ | ۷۹ | کوکل | کوکل | ۲۵ |
| ۵ | ۸۵ | مخمور | مخمو | ۲۶ |
| ۲ | ۱۱۰ | رسی | رسه | ۲۷ |

(دویم)

| شمیر | ناسم | سم | مخ | کرښه |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| ۲۸ | زیه | زیر | ۱۱۴ | ۲ |
| ۲۹ | ما ڼي | ما ڼي | ۱۱۴ | ۹ |
| ۳۰ | خلېي | خپلې | ۱۲۰ | ۳ |
| ۳۱ | ما ڼي | ما ڼې | ۱۲۱ | ۱۳ |
| ۳۲ | ۰۷۱ | ۱۷۰ | ۱۳۴ | ۱۲ |
| ۳۳ | رڼ | زړه | ۱۶۶ | ۳ |
| ۳۴ | پا تو | پا ته | ۱۶۸ | ۰ |
| ۳۵ | کوډره | کوډر ه | ۱۹۵ | ۱۰ |
| ۳۶ | یمغو ره | پمغوره | ۱۹۷ | ۸ |
| ۳۷ | ڼه | ته | ۲۰۰ | ۱۵ |
| ۳۸ | نا قراه | نا قراره | ۲۰۲ | ۱۲ |
| ۳۹ | تو ي | توري | ۲۳۳ | ۹ |
| ۴۰ | ژوندن | ژوندون | ۲۴۷ | ۱۵ |
| ۴۱ | نم | نم شي | ۲۵۱ | ۱۰ |
| ۴۲ | مخد دم | مخدوم | ۲۵۲ | ۲ |
| ۴۳ | خ ا | خند ا | ۲۵۲ | ۵ |
| ۴۴ | لا ی | لا ر ي | ۲۵۲ | ۱۲ |
| ۴۵ | غذابه | عذ ابه | ۲۵۵ | ۱۹ |

(دریم)

# یادونه

څرنګه چې ددې دیوان ټول کار په ژر حروفو بای ته رسېدلی دی نو په ځینو کلمو کې ځای ځای حروف په چاپ کې نه دي راغلي او له منځه تللي دي او هم د ۳۶ مخ څخه تر ۸۳ مخ پورې د غزلونو د شمېر سلسله غلطه او د ځینو غزلونو شمېر په چاپ کې نه دی راغلی هیله ده چې ګران لوستونکي به په دې برخه کې زموږ معذرت ومني .



(څلورم)

# da sadíq dewā́n

Introduction & Corrections

by

**ceṛanwā́l dost**

The Academy of Sciences of Afghanistan
Institute of Languages and Literature
1979

دولتي مطبعه